ریاضي
اول ټولګی
ر ۱ - ۵۷

عنوان، د ۰ - ۱۰ پورې په سلسله کښې عددونه قیاس کول او حسابول (شمېرل). عددونه د لسګونو او یونونو په ګروپونو کښې ترتیبول

| د استاد مشغلې | د شاګردانو مشغلې | درسي معاونات |
|---|---|---|
| - په توره تخته یو زیات شمېر نقطې یا دایرې جوړول (رسمول) (۱)<br>- په توره تخته نقطونه د کتلو او د هغوئ د شمېر د قیاس کولو غوښتنه کول (د شمېرلو پاره کافي وخت نهٔ ورکول): د تورې تختې د لاندینه برخې په یو نیمائي کښې قیاس کړے شوي عددونه لیکل. | **۱- قیاس کول**<br>- مشاهده کول.<br>- تورې تختې ته کتل؛ د نقطو د شمېر قیاس کولو کوشش کول. د بېل بېل طالب علم د قیاس کړے شوي عددونو وئیل. | توره تخته |
| - د نقطو د شمېرلو غوښتنه کول؛ د تورې تختې د لاندینه برخې په کڼه نیمائي کښې شمېر کړے شوي عددونه لیکل.<br>- غوښتنه کول چې یوه داسې طریقه پیدا کړي چې حساب کول پرې اسانیږي او نتیجه پرې چټک کېدے شي. (۲)؛<br>په آخر کښې د شمېرلو د اسانتیا د پاره ئې په دې کښې لارښودنه کول چې د لسو لسو نقطو د ګروپونو د حساب د اسانولو د پاره دایرې چاپېره کړے.<br>- په توره تخته د عددونو د مقابله کولو غوښتنه کول او غوښتل چې هغه عدد پیدا کړي کوم چې د صحیح عدد سره نزدې د ے.<br>- طالب علمانو چې د دې مسئلې حلونه پخپله پیدا کړي دي شاباسے ورته وئیل. | **۲- شمېرل**<br>- د یو یو تن پخپله د نقطو د شمېرلو کوشش کول (د زیاتو طالب علمانو د خپلو ګوتو نه او د ځینو د یوې لرګي فاسا نه شمېرل؛ د شمېر مطابق عددونه وئیل؛ پته لګول چې د اخر تجویز شوې نتیجې دي څو مرګه یوه نتیجه صحیح کېدے شي)<br>- تجویزونه وړاندې کول، په ډېرو طریقو او د هغوئ په فائدو او نقصانونو خبرې اترې کول؛ بالاخره د هر و لسو نقطو نه کرښه تاوه ول، د دغه ګروپونو شمېرل، باقي یونونه ورسره جمع کول، د تورې تختې د لاندینه برخې په منځ کښې د صحیح عدد لیکل.<br>- قیاس کړے شوي او شمېر کړے شوي عددونه د اصل عدد سره مقابله کول.<br>- د لسیزو ګروپونه او یونونه یو ځل بیا چک کول. | |
| - د وسیله مشق پاڼې ته د کتلو غوښتنه کول.<br>- د دې مسئلې په حلولو کښې لارښودنه کول: (هلته ۹۰ ۵۹ ګلان دي)<br>- د ګلانو د رنګونو غوښتنه کول. | **۳- د شمېرلو (حسابولو) د پاره لسګون او یونونه استعمالول**<br>- د مشق پاڼې مطالعه کول، پته لګول چې په دې کښې هم هغه شان کار د ے کوم چې اوس اوس په تخته وکړے شو.<br>- اول د ګلانو د شمېر قیاس کول؛ په بنې بکس کښې د دغه عدد لیکل، بیا د لسو ګلانو د ګروپونو نه کرښه تاوه ول، په توجه سره صحیح شمارل، په کڼ اړخ کښې د حساب کړے شوي عدد لیکل، مقابله کول.<br>- په خاموشۍ سره کار کول: د ګلانو رنګول، د لسو هر ګروپ په مختلفو رنګونو سره. | مشق پاڼه ر ۱-۵۷-۱ |

د دې درسي پلان په باب څه نورې تبصرې :

(١) استاد د ٥١ نه تر ٧٥ پورې په توره تخته په غير د څه ترتيب نه پرې داسې نقطې جوړې چې په وضاحت سره ليدل کيږي. د تورې تختې په آخر کښې به د څو عددونو د ليکلو د پاره ځای وي، د دغه عددونو د پاره چې قياس کړے شوی دی او وروستنه اصلاح شوی دی. د قياس کولو معنی دا ده چې طالب علمان به د شمېرلو يا حسابولو نه په غير صحيح عدد يا صحيح عدد ته نږدې عدد پيدا کوي.

(٢) دا ډېره مهمه ده چې طالب علمان پخپله موضوع ته د نزديکت د لارو د پيدا کولو او په مخوئ د بحث کولو د پاره کافي وخت ولري. د هر مناسب او ښه تجويز ستاينه به کيږي. څرګنده چېرې شاګردانو ته پخپله دا پته نه وي چې شمېر د لسو لسو نقطو د ګروپونو نه د کرښې په تاوه ولو سره اسانيږي نو استاد دې په دغه وخت کښې بغير د څه وئيلو د لسو لسو نقطو نه کرښه تاو کړي. ښه به داوي چې شروع د تورې تختې د ښي اړخ د سر د کنج (ګوټ) نه وشي. د دې نه وروسته به شاګردانو ته پته ولګي چې استاد ولې داسې وکړل. اوس به دوئ پخپله نقطې د لسو په ګروپ کښې د شمېرلو يا حساب کولو د پاره ترتيبوي.



# د بل درسي پلان د ښوونکو نه مخکښې د ورپسې درسونو خاکې

| | | |
|---|---|---|
| عنوان : په شمېرلو ( حسابولو ) کښې مشق کول ؛ لسيز او يونيزونه استعمالول | | اول ټولګی دریمه درسي ورځ ۵۷ - ۱/ر |
| درسي معاونات | د شاګردانو / استاد مشغلې | |
| مشق پاڼه ر۱-۵۷-۲ | ۱- معلومول چې د دې مشق پاڼې د سر په بنې اړخ کښې د توروليا چرخه کولو په ذريعه د لسو لسو ګروپونه جوړ کړے شوي دي.<br>۲- د ټټلو ټول شمېر قياس کول ( تخمينول )، دا عدد په بنې بکس کښې ليکل.<br>د ټټلو اصلي شمېر حسابول ، په کيڼ بکس کښې يې ليکل .<br>۲- د لاندينه برخې د بنې اړخ د ټټلو د بل ګروپ کار حلول :<br>الف : د قياس کولو او په بنې بکس کښې د ليکلو په ذريعه .<br>ب : د لسيزو د تورولو او چرخه کولو، په لسيزو او يونيزونو کښې د حسابولو او شوشله د چک کولو په ذريعه .<br>ج : د صحيح شمېرې ليکل په کيڼ بکس کښې .<br>۴- د مشق پاڼې د کيڼ اړخ کار په همدغه طريقه حلول.<br>۵- طالب علمان بهر ميدان ته ويستل. د طالب علمانو د يوې ګروپ لوبې کول: سره ګډ وړکيدل ، د اشارې په وخت کښې د لسو لسو ګروپونه جوړول ؛ لس ګونه او يونيزونه شمېرل ( حسابول )، شوشو شله تکرار کول. | |

2 _ 57 | 1ر

۲ - ۵۷ | ۱ر

عنوان : پهٔ حسابولو ( شمېرلو ) کښې نورمشق، لسيز او يونتونه استعمالول .

| د شاګردانو / استاد مشغلې | |
|---|---|
| ۱- د درېمې مشق پاڼې پهٔ کارخبرې کول ؛ د لسو د بنډل او د يونتونو پېژندل . | مشق پاڼه ر۱-۵۷-۳ |
| ۲- د صحيح عددونو نه د داېرې د تاوه ولو پذريعه د مشق پاڼې مکملول لکه څنګه چې پهٔ مثال کښې ښودلے شوی دی . | |
| ۳- څلورمه مشق پاڼه مطالعه کول او پهٔ کار ئې بحث کول . پهٔ اول مثال پهٔ توره تخته کارکول . | مشق پاڼه ر۱-۵۷-۴ |
| ۴- د لسولسو پهٔ شمېرلو او ليکلو سره د مشق پاڼې مکملول ، بيا د يونتونو شمېرل او ليکل ، بيا د لسيزو او يونتونو جمع کول، پهٔ آخر کښې د ټولو مساواتو حلول لکه څنګه چې پهٔ مثال کښې ښودلے شوی دی ( ۷۲ = ۲ + ۷۰ ) ، مقابله کول ، د انړې وال سره ئې چېک کول . | |

3-57 ر۱
۳-۵۷ ر۱

۵۲ ۶۳ ۷۳ | ۶۲ ۶۳ ۷۲ | ۳۴ (۳۲) ۲۲

۹۰ ۸۰ ۹۱ | ۵۲ ۴۲ ۶۳ | ۳۷ ۴۸ ۳۸

4-57 ر۱
۴-۵۷ ر۱

۴۰ + ۳ = □

□ + □ = □

□ + □ = □

۷۰ + ۲ = ۷۲ | □ + □ = ۹۷ | □ + □ = ۸۸
□ + □ = ۳۸ | □ + □ = ۹۸ | □ + □ = ۹۴
□ + □ = ۵۹ | □ + □ = ۶۰ | □ + □ = ۷۰

عنوان: د شمېر پاڼې په عددونو کارکول، د ۰ – ۵۰ پورې په سلسله کښې د یو نیټونو جمع کول بغیر د انتقال (اړولو) نه

| د استاد مشغلې | د شاګردانو مشغلې | درسي معاونات |
|---|---|---|
| | ۱- د شمېر په جدولونو (ټېبلونو) عددونه ښودل | |
| - په توره تخته د ۱۰۰ نقطو یو جدول (ټېبل) جوړول (۱)<br>د جوړولو په وخت د لسو په قدمونو کښې د شمېر غوښتنه کول.<br>- د لومړي قطار د نقطو ټړل، د دې نقطو د شمېر په حقله پوښتنه کول.<br>- د دویم قطار د لومړیو ۵ نقطو ټړل، څومره نقطې چې سره ټړلې شوې دي د هغو د شمېر په حقله پوښتنه کول.<br>- د نورو نقطو د ټړلو غوښتنه کول چې تر څو ۲۰ نقطې ونړلې شي.<br>- د دې مشق جاري ساتل، د ورکړې شوو عددونو مطابق قدم په قدم د نورو نقطو ټړل (مثلاً: ۳۵، ۴۲، ۵۹، ۷۰، ۷۸، ۸۸، ۹۳، ۹۹).<br>- د لومړي مشق پاڼې د مطالعې غوښتنه کول، په ورکړې شوي مثال کښې د ټړلې شوو نقطو شمېر معلومول.<br>- د مشق پاڼې په نورو برخو د کارکولو په حقله پوښتنه کول د مشق پاڼې د مکملولو غوښتنه کول؛ مرسته کول. | په غور کتل، په لسیزو کښې شمېر کول.<br>- په غور کتل، شمېرل، ۱۰ ویل.<br>- په غور کتل، شمېرل، ۱۵ ویل.<br>- د ټړلو د پاره د یو ماشوم لومړیو نقطو ته اشاره کول، د نورو شمېرل او متفق کېدل. د یو ماشوم ۲۰ پورې نقطې ټړل، د عدد ویل.<br>- د ځکښنې په شان عمل کول، د یو ماشوم اشاره کول هغه نقطو ته چې سره ټړل کیږي، د نورو شمېرل او متفق کېدل، نقطې ټړل د یو ماشوم په ذریعه، همېشه د ځکښنیو عددونو نه شروع کول، د هر ماشوم خپل خپل عدد ویل.<br>- د مشق پاڼې مطالعه کول، ټړلې شوې نقطې شمېرل د صحیح عدد معلومول او ویل، په بکس کښې یې لیکل.<br>- معلومول او تشریح کول د عدد مطابق د نقطو ټړل، په خاموشۍ کارکول؛ اندېوال سره مقابله کول. | توره تخته<br>مشق پاڼه را-۵۸-۱ |
| | ۲- په شمېر پاڼه باندې د جمع مساوات ښودل | |
| - په توره تخته د ۱۰۰ نقطو یو نوی شمېر جدول جوړول<br>- د ۱۲۰ نقطو د ټړلو غوښتنه کول.<br>- یو مساوات مثلاً ۱۲ + ۶ = ☐ په توره تخته لیکل، د نقطو په ذریعه د حل د پیدا کولو غوښتنه کول.<br>- د شمېرلو، د ۶ نورو نقطو د ټړلو او د حاصل (نتیجې) په بکس کښې د لیکلو غوښتنه کول (۲).<br>- هم په دې طریقه د نورو مساواتو د حل کولو لارښودنه کول مثلاً: ۲۴ + ۵ = ☐؛ ۲۱ + ۹ = ☐؛ ۲۳ + ۶ = ☐<br>- د دویمې مشق پاڼې د مطالعه کولو غوښتنه کول: په کارځایونو پوښتنو د پاره لارښودنه کول، چک کول، مرسته کول. | - په غور کتل، شمېر کول.<br>- د یو ماشوم ۱۲۰ نقطې سره ټړل، د دولسمې نقطې د لاندې یوه وړه عمودي کرښه راښکل او ویل: "د ۱۲۰ ټړلې شوې نقطې د ۱۲۰ عدد د پاره دي". د نورو په غور کتل.<br>- بحث کول، تجویزونه وړاندې کول لکه: د ګوتې په ذریعه ۶۰ نورې نقطې ښودل یا ۶۰ نورې نقطې رنګول یا ۶۰ نورې نقطې سره ټړل.<br>- د یو طالب علم ۶۰ نورې نقطې ټړل (یوه وړه عمودي کرښه د شروع د نقطې په حیث استعمالول) د نورو شمېرل، د ۱۸۰ نتیجه (حاصل) معلومول، د یو طالب علم د مساوات ۱۲ + ۶ = [۱۸] د مکملولو د پاره په بکس کښې حاصل لیکل.<br>- د ځکښنې په شان عمل کول، همېشه د لوی عدد نه یې جاري ساتل، د ځکښنیو عددونو روښانولو د پاره عمودي کرښو لرې کول، د نورو کره (چک) کول، که چېرته د شروع صحیح نقطه ورنه ورکه شوه.<br>- د مشق پاڼې مطالعه کول، په کارځایونو پوښتنو: نقطې سره ټړل، شمېرل، په بکسونو کښې صحیح عددونه لیکل، یو اندېوال سره کارکول، ټولګي ته د نتیجو لوستل. | توره تخته<br>مشق پاڼه را-۵۸-۲ |

د دې درسي پلان په باب څو نورې تبصرې ؛

۱، جدول ( ټېبل ) دې د رومبي مشق پاڼې د شمېر پاڼې او شمېر چارټ مطابق جوړ شي خود نقطو د ټولو نه په غير.

شمېر پاڼه او شمېر چارټ دواړه د شمېر جدولونه دي. همدغه رنګ د بنډلو يو بل ګروپ چې استاد يې په توره تخته د شمېرلو د مقصد د پاره جوړوي هم د شمېر جدولونه ( ټېبلې ) دي.

۲، کله چې يو نوے عدد ( = نورې نقطې ) جمع کولے شي نو طالب علمان دې د مکمبيني عدد د آخري نقطې نه شروع کوي. د مساوات د دوه عددونو د واضح بنودلو د پاره دې طالب علمان د هر عدد نه روستو يوه تخښنه وکړي. دا به د مساوات بيا جوړول او تکرار آسان کړي لکه:

□ = ۶ + ۱۲

د يو نوي کار ( عمل ) د شروع کولو په وخت د اوړې عمودي کرښې د توري تختې نه او بيا په مشق پاڼه کښې په اسانه سفاکيدے شي.

| ر۱ | 1-58 |
|---|---|
| ر۱ | ۱-۵۸ |

۸ ۲ | ۴ ۵ | ۹ ۹ | ۵ ۶ | ۳ ۴

| ر۱ | 2-58 |
|---|---|
| ر۱ | ۲-۵۸ |

□ = ۶ + ۴۴

□ = ۷ + ۲۲

□ = ۴ + ۲۳

□ = ۵ + ۳۵

□ = ۳ + ۲۶

□ = ۵ + ۱۴

د بل درسي پلان د ښوونځي د ... د ورېښي درسونو ځانګړي

| | | |
|---|---|---|
| عنوان: د شمېر جدولونو په ذریعه د تفریق د مساواتو حل کول بغیر د انتقال (اړولو) نه | | |
| درسي معاونات | د شاګردانو / استاد مشغلې | |
| توره تخته | ۱- د مخکښینی سبق په شان د جمع تکرارول بغیر د انتقال (اړولو) نه: د استاد په توره تخته ۵۰ نقطې جوړول، د دوو مساواتو د حل کولو د پاره. لکه: ۱۶ + ۳ = ☐ او ۴۴ + ۶ = ☐ څنګه چې سمون خوری همغسې سره نقطې نړول. | اول درسي ساعت ۳۵ - ۴۰ |
| توره تخته | ۲- د شمېر جدول (ټېبل) په ذریعه تفریق ښودل: الف - د استاد د تفریق یو مساوات مثلاً ۲۹ - ۵ = ☐ په توره تخته لیکل، د نقطو د استعمالولو په ذریعه د حل ښودل او معلومولو غوښتنه کول. ب - د طالب علمانو په جدول کښې د تفریق د ښودلو په مقله تجویزونه وړاندې کول، د ټولو متفق کېدل چې پروسېه به ۲۹ نقطې سره نږدې بیا به ۵ آخری نقطې باندې چرخه کوی. | |
| توره تخته | ۳- په توره تخته د بل مثال په ذریعه کارکول مثلاً ۳۹ - ۷ = ☐ | |
| مشق پاڼه را - ۵۸ - ۳ | ۴- د درسي مشق پاڼې په شمېر جدولونو هم د داسې تفریق مشق کول: الف - د لومړنی مثال مطالعه کول او کار پرې کول، د نورو کارونو په عمل ځان پوهول (په لاندېنۍ کرښه کښې د دې دوه د چرخ کولو نه مخکښې نقطې سره ونړی)؛ ب: د طالب علمانو په خاموشۍ سره کار کول. د متعلقه شمېر نقطې چرخه کول، د نړولو شروع نقطو باقی تعداد شمېرل، حل په بکس کښې لیکل؛ ج: نړلګی نه د نتاڅو لوستل، چک کول، مقابله کول. | |

| | | |
|---|---|---|
| را ۵۸ - 3 / را ۵۸ - ۳ ..... ..... (دنقطې) ☐ = ۵ - ۴۵ | ..... ..... (دنقطې) ☐ = ۶ - ۲۸ | ..... ..... (دنقطې) ☐ = ۴ - ۳۷ |
| ..... ..... (دنقطې) ☐ = ۵ - ۳۶ | ..... ..... (دنقطې) ☐ = ۲ - ۴۷ | ..... ..... (دنقطې) ☐ = ۳ - ۱۶ |

عنوان: د جمع او تفریق کارونه (عملیات) حل کول؛ د دوئ د لیکلو پر نوے شکل زده کول

| د شاگردانو / استاد مشغلې | |
|---|---|
| ۱- د مکعبینو سبترینو په شان د جمع تکرارول، په شلورو مثالونو کار کول مثلاً ، ۱۲ + ۵ = ☐ ؛ ۲۲ + ۴ = ☐ ؛ ۳۱ + ۸ = ☐ ؛ ۳۳ + ٦ = ☐ (ټول لیکل شوی مساوات به په تخته وی) | توره تخته (شمیر چارټ) |
| ۲- د جمع د لیکلو پر نوے شکل ښودل: الف: د استاد تشریح او عملی مظاهره کول چې پرومبے کار (۱۲ + ۵ = ۱۷) به داسې لیکل شی، (پرومبے د نقطو کرښې جوړول بیا عدد ۱۲، او ۰۵، او + لیکل، بیا حاصل چې د ۷، نه شروع کیږی)؛ ۱۲ + ۵ = ۱۷ ب: حل شوی مساوات په نوې طریقه په توره تخته او په سلیټونو پہ پرمبنی قدم کښې لیکل (طالب علمان په کښې مشغولول)؛ ج: په فاشدې بحث کول: پر نقطو او لسیز پر بل د لاندې لیکل چې په اسانه جمع کړے شی. | توره تخته/سلیټونه |
| ۳- هم دا شان په نوی شکل د تفریق لیکل معرفی کول: په زړه طریقه مساوات حل کول، بیا ئې په نوی شکل لیکل (مثلاً: ۱۹ - ۴ = ☐ ؛ ۲۸ - ۷ = ☐ ؛ ۳٦ - ٦ = ☐ ؛ ۴۷ - ۵ = ☐) | |
| ۴- په توره تخته د حل کړے شوی مساوات په شان شلورمه مشق پا نړه مکملول. | مشق پانړه را - ۵۸ - ۴ |

| ۱ر | 4 - 58 |
|---|---|
| ۱ر | ۴ - ۵۸ |

۴۲ + ۸ = ☐

۱۲ + ۴ = ☐

۳۳ + ٦ = ☐ (۳۳، ٦ +)

۱٦ - ۷ = ☐

۴۸ - ۸ = ☐

۲۷ - ۵ = ☐ (۲۷، ۵ =)

ریاضي
اول ټولګی
ر-۱-۵۹

عنوان: د ۰ - ۵۰ پورې په سلسله کښې د ۱۰ جمع او تفریق

| د استاد مشغلې | د شاګردانو مشغلې | درسي معاونات |
|---|---|---|
| - یو بل پسې وظائف (عملیات) په زوره لوستل مثلاً ۲ + ۷ = □ ، ۸ - ۵ = □ ؛ ۱۲ + ۶ = □ ؛ ۱۲ - ۳ = □ ؛ په یاد د مساواتو د حل کولو د خنګ په خنګ (متوازي) مساوات د معلومولو او په تورو تخته په ورمبو دورو مثالونو د کار کولو غوښتنه کول<br>په نورو وظائفو سره جاري ساتل | ۱- د ۱-۱۰ او د ۱۱-۲۰ ترمنځه خنګ په خنګ (متوازي) جمع او تفریق په ذریعه ذهني مشق.<br>- غوږ نیول، په خاموشۍ شمېرل د بېل بېل طالبعلم د نتیجې (حل، ویئل او د خنګ په خنګ (متوازي) مسائل معلومول مثلاً ۲ + ۷ = ۹ ، ۱۷ - ۳ = ۱۴ ، ۱۲ + ۷ = ۱۹ ، ۷ - ۳ = ۴<br>- د مخکښې په شان حساب کول، په تورو تخته د یو څو د خنګ په خنګ (متوازي) مساواتو لیکل. | تورو تخته |
| - د ۱-۵۰ پورې شمېر جدول په تورو تخته جوړول. د طالب علمانو نه د نقطو ترلو په ذریعه د عدد ۱۶ د ښودلو غوښتنه کول (۱) | ۲- د شمېر جدول د استعمالولو په ذریعه د ۱۰ جمع کول.<br>- په غور کتل. د یو طالب علم د ورمبو ۱۶ نقطو ترل | تورو تخته |
| - په تورو تخته د مثال ۱۶ + ۱۰ = □ لیکل، د یو حل (نتیجې) معلومولو غوښتنه کول.<br>- په حل (نتیجې) د تبصرې کولو غوښتنه کول. | - بحث کول، د ۱۰ نورو نقطو په ترلو متفق کېدل چې ۴ په دوئم قطار، ۶ په دریم قطار کښې دي.<br>- معلومول او ویئل چې کله لس جمع کیږي نو هغه نقطه چې حاصل مثلاً ۲۶ ښائي تیک د هغې نقطې لاندې ده کومه چې اول عدد مثلاً ۱۶ ښائي. حل (نتیجه) په بکس کښې لیکل. | |
| - د ۲۳ + ۱۰ = □ ، ۳۵ + ۱۰ = □ او داسې نورو په یو ل نور وظائف ورکول.<br>- د وظیفې (عملیې) په نوې طریقه په تورو تخته د لیکلو لارښودنه او مظاهره کول<br>۱ ۶<br>+ ۱ ۰<br>۲ ۶<br>- په همدغه طریقه د لاندېنیو مساواتو په حل کولو کښې لارښودنه کول، ۲۷ + ۱۰ = □ ، ۳۸ + ۱۰ = □ | - د نقطو ترلو (یا نقطو ته د اشاره کولو) په ذریعه د جمع حل کول.<br>- په غور کتل او غوږ نیول، په لیکلو او په صحیح جمع کولو پوهېدل. یو یو، یو نیم نیمه ... او بیا لسیز.<br>- د مخکښې په شان کار کول، نقطې ترل، شمېر کول، په بکس کښې حل (نتیجه) لیکل، په نوي شکل کښې د کار لیکل. | |
| - د ورمبي مشق پاڼې د مطالعه کولو غوښتنه کول.<br>- د مشق پاڼې د مکملولو غوښتنه کول، د ضرورت په وخت مرسته کول، چک کول. | - د مشق پاڼې مطالعه کول، بحث کول او په کار ځان پوهول.<br>- په خاموشۍ کار کول، د جمع کولو د پاره نقطې ترل، شمېرل، نتیجه (حل) په بکس کښې لیکل، د وظائفو په نوي شکل کښې لیکل. | مشق پاڼه ر۱-۵۹-۱ |
| - د دوئمې مشق پاڼې ورمبي کار ته د کتلو غوښتنه کول او تشریح ئې کول. | ۳- د شمېر جدول د استعمالولو په ذریعه د ۱۰ تفریق کول.<br>- د ورمبي کار مطالعه کول: ۲۶ - ۱۰ = □ ، د ۲۶ نقطو ترلو په ذریعه حل کول بیا د ۱۰ نقطو باندې چرخه کول. | مشق پاڼه ر۱-۵۹-۲ |
| - په تورو تخته په نوي شکل کښې د کار د لیکلو غوښتنه کول.<br>- د دوئمې وظیفې (عملیې)، د حل کولو لارښودنه کول: ۴۳ - ۱۰ = □ ، په همدغه طریقه، هم په نوې طریقه دا لیکل. | - د یو طالب په تورو تخته لیکل:<br>۲ ۶<br>- ۱ ۰<br>۱ ۶<br>- د ۴۳ نه شروع کول - په ۱۰ نقطو چرخه کول، د ۳۳ حاصل (نتیجې) لیکل. | تورو تخته |
| - د مشق پاڼې د مکملولو غوښتنه کول، د ضرورت په وخت مرسته کول. | - د وظائفو (عملیو) په مکملولو په خاموشۍ سره کار کول. یو انوی وال سره ئې چک کول، د نتائجو ټولګي ته لوستل. | مشق پاڼه ر۱-۵۹-۳ |

| درسی پلان نمبر ر۱- ۵۹ | |
|---|---|

د دې درسی پلان په باب ځنې نورې تبصرې ،

۱، د ۱- ۱۰۰ پورې د شمېر چارټ نه هم استاد کار اخیستلی شی لیکن بنه به داوی چې د دې سبق دپاره په تور تخته د ۱-۵۰ پورې د شمېر یو تهسل ( جدول ) جوړکړے شی .

1—59 | ر1
١-٥٩ | ر١

□ = ١٠+٢٢

□ = ١٠ + ٢٦

□ = ١٠ + ١٤

١ ٤
١ ٠ +

□ = ١٠ + ١٩

□ = ١٠ + ٢٢

□ = ١٠ + ٣٤

2—59 | ر1
٢-٥٩ | ر١

□ = ١٠-٢٣

□ = ١٠ - ٤٣

□ = ١٠ - ٣٦

٣ ٦
١ ٠ =

□ = ١٠ - ٢٧

□ = ١٠ - ٤٨

□ = ١٠ - ١٩

## د بل درسي پلان د ښوونځي د وړېيې درسونو خاکې

عنوان: پهٔ صحیح سلسله سره عددونو ته ځای ورکول

| درسي معاونات | د شاګردانو / استاد مشغلې |
|---|---|
| | ۱- لس شاګردان مخې ته را بلل ؛ پخپله داسې قطار جوړول چې هر یو پکښې د خپل قد و قامت مطابق ځای ونیسی . |
| د عددونو کارډونه ۱ - ۱۰ پورې | ۲- مخکې کارډونه ښوونکی چې د ۱-۱۰ پورې پرې نمبرې لیکلې شوې وی (یو کارډ یو نمبر) او غوښتنه کول چې هر یو دې پهٔ قطار کښې د خپل پوزیشن (قد و قامت مطابق) کارډ واخلی . |
| | ۳- شاګردان خپل خپل ځایونه بدلوی او سره ګډوډ کېږی. خو بیا پهٔ یوه اشاره سره بېرته خپل مخکینی ځایونه بیا ترتیب پیدا کوی . |
| مشق پاڼه ر ا-۳۴-۲ | ۴- د مشق پاڼې ر ا-۳۴-۲ پهٔ کار باندې خپله پوهه راوسپړل ؛ مشق پاڼې باندې کار کول ، چیک کول / اصلاح کول . |
| | ۵- د شاګردانو نه پوښتنه کول چې ایا د مشق پاڼې پهٔ آخری برخه کښې کوم بل ترتیب تاسو وینئ او کنه ؟ |
| داعدادو کارډونه د (۱ - ۱۰ پورې) مشق پاڼه ر ا-۳۴-۲ | ۶- کهٔ ماشومان بل ترتیب پهٔ مشق پاڼه کښې پیدا کړی یا ئې نهٔ کړی همدغه ماشومان به د همدغو کارډونو سره د ټولګی مخې ته را بلل کېږی چې ودرېږی لکه څنګه چې د مشق پاڼې پهٔ آخر کښې ښودل شوی دی . د زیات مدد د پاره د هر دویم شاګرد نه دا مطالبه کېدے شی چې یو قدم روستو لاړ شی . (حل : د ۱-۵ پورې عددونه د کڼې خوانه ښئ خواته ؛ د ۶ - ۱۰ پورې عددونه د ښئ خوانه کڼې خواته ) . |



# د بل درسي پلان د ښودلو نه مخکښې د ورېښې درسونو خاکې

| | |
|---|---|
| عنوان : د ۰ - ۵۰ پورې په سلسله کښې دمکملو لسیزو د جمع کولو مشق کول | |
| دښاګردانو / استاد مشغلې | درسي معاونات |
| ۱- ذهني تربیت : په مختلفو مشقونو کښې د ۱۰۰ پورې دشمېر کولو تکرارکول ( په لسیزو کښې شمېرکول ، دېرمکمل لسیزنه تربل مکمل لسیز پورې مخ په وړاندې او شا ته په یونیټونو کښې شمېرکول .<br>۲- همیشه ۱۰ جمع کول ، الف : د ۱- ۵۰ پورې دشمېرجدول ( چیبل ، جوړول داستاد په ذریعه ب : دنقطو د وصل کولو ( ترلو ) په ذریعه په مثال ۲۹+۱۰ = □ پرځای کار کول . دغه نوے شکل په توره تخته لیکل . ج : بغېر د ترونکو کښونه نقطوته داشاره کولو په ذریعه دخو مساواتو حلول مثلاً ۱۸+۱۰ = □ ، ۳۶+۱۰ = □ او داسې نور . د : دهمدغه ډول نورمساواتو په یادو حلول ، داستاد پرمساوات ویل او دبیل بیل طالب علم د هغه نتیجه ویل .<br>۳- دمکملو لسیزو لکه ۲۰ ، ۳۰ ، ۴۰ معرفي کول او د جمع کولو مشق یې کول ، الف ، ۱۷+۲۰ = □ په توره تخته لیکل داستاد له طرفه . ب : دحل موندل د طالب علمانو له خوا ، اول د ۱۷ نقطو ترل دیوبل سره او بیا ۲۰ نورې نقطې سره ترل ، چیک کول ، شمېرل ( حسابول ) ، په بکس کښې نتیجه لیکل حواله کړے شوے کار په نوي شکل کښې هم لیکل . ج ، په دوو نورو مثالونو باندې کار کول مثلاً ۱۶+۳۰=□ ۴+۴۰ = □ ( په نوي شکل کښې دحواله کړے شوي کار لیکل به نه هېرول کیږي ) ، ماشومان به دا زده کوي چې حواله کړے شوي کار ونه په صحیح ډول ولیکي ، « ۱۰ » ټیک د « ۱۰ » لاندې ، یونټونه ټیک د « یونټونو » لاندې لیکل . )<br>۴- د ذریعه مشق پاڼو استعمالول او د جمع د ډېرو مثالونو مشق کول . الف ، په کارځان پرهول د مساواتو حلول ، په نوي شکل د هغوي لیکل ( د ضرورت په وخت د شمېر جدول استعمالول ) ب ، د مشق پاڼې مکملول . | توره تخته<br><br><br><br><br><br><br>مشق پاڼه ر ا - ۵۹ - ۳ |

| | | | |
|---|---|---|---|
| ر ا 3-59 / ر ا ۳-۵۹ (●●●●● ●●●●● ×5) | □ = ۱۰ + ۳۴ | □ = ۳۰ + ۱۸ | □ = ۲۰ + ۲۳ (۲۳ + ۲۰) |
| □ = ۲۰ + ۲۷ | □ = ۱۰ + ۲۹ | □ = ۱۰ + ۴۰ | □ = ۴۰ + ۹ |
| □ = ۱۰ + ۳۱ | □ = ۲۰ + ۲۵ | □ = ۳۰ + ۱۵ | □ = ۲۰ + ۲۸ |

عنوان : د ۰ - ۵۰ پورې په سلسله کښې د مکملو لسیزو د تفریق کولو مشق کول

| د شاګردانو / استاد مشغلې | |
|---|---|
| ۱- ذهنی تربیت : د ۱۰ پورې مخ په وړاندې او شا ته د شمېرلو تکرار کول ، په قدمونو کښې شمېر کول . | |
| ۲- شمېرنه د ۱۰ ، تفریق کول . الف : د ۵۰ ، پورې د یو تهیل جوړول په توره تخته د استاد په ذریعه ، ب : په یو مثال مثلاً ۲۲ - ۱۰ د نقطو د ترلو په ذریعه یو ځای کار کول . ج : په غیر د نقطو د وصل کولو نه نقطو ته د اشارې کولو په ذریعه . د څو مساواتو حلول مثلاً ۱۴ - ۱۰ = □ ، ۳۳ - ۱۰ = □ او داسې نور . د ، د هغه قیمه مساوات په یادو حلول ، د استاد یو مثال (مساوات) ویل ، د بیل بیل طالبعلم د هغه نتیجه ویل . | توره تخته |
| ۳- د مکملو لسیزو لکه ۲۰ - ۳۰ - ۴۰ معرفی کول او د تفریق کولو مشق یې کول ، الف : ۳۲ - ۲۰ = □ په توره تخته لیکل د استاد له طرفه . ب : د حل موندل د طالب علمانو له خوا : اول د ۳۲ نقطو وصل کول یو ترېله ، بیا په ۲۰ نقطو چرخه را بنګل ، چک کول ، شمېرل ، په بکس کښې د نتیجې لیکل ، حواله کېښه شوې کار په نوی شکل کښې لیکل . ج : په دوو نورو مثالونو کار کول مثلاً ۴۸ - ۴۰ = □ ، ۴۱ - ۳۰ = □ - حواله کېښه شوې کار په نوی شکل کښې هم لیکل . | توره تخته |
| ۴- شلورمه مشق پانړه استعمالول او د تفریق په نورو مثالونو مشق کول . الف : په کار شان پرهول : د مساواتو حلول ، په نوی شکل د هغوی لیکل (که ضرورت وو نو د شمېر جدول استعمالول) . ب : د مشق پانړې مکملول . ج : مقایسه کول . | مشق پانړه را-۵۹-۴ |

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۲۴ - ۱۰ = □ <br> ۲ ۴ ر <br> - ۱ ۰ | ۴۳ - ۱۰ = □ | ۳۸ - ۱۰ = □ | را | 4 - 59 <br> را | ۴ - ۵۹ |
| ۴۹ - ۱۰ = □ | ۲۱ - ۱۰ = □ | ۴۰ - ۱۰ = □ | ۱۸ - ۱۰ = □ |
| ۱۳ - ۱۰ = □ | ۵۰ - ۴۰ = □ | ۲۷ - ۳۰ = □ | ۲۶ - ۲۰ = □ |




-۱۱۱-

ریاضي
اول ټولګی
ر ۱ - ٦٠

عنوان، د ۱ - ۵۰ پورې په سلسله کښې د دوه رقمي عددونو جمع او تفریق په غیر د انتقال (اړولو) نه

| د استاد مشغلې | د شاګردانو مشغلې | درسي معاونات |
|---|---|---|
| | ۱- ذهني تربیت: د لسګونو جمع کول او تفریق کول (۱) | |
| - داسې ونلایت وټیل لکه: ٥ ۴۰ + ۱۰ = □<br>٥ ۳۰ - ۱۰ = □<br>٥ ۲۴ + ۱۰ = □<br>٥ ۲۷ - ۱۰ = □ | - غوږ نیول، په یادو حسابول، د طالب علمانو ځانله ځانله جواب ورکول کله چې ورنه خواست وشي. | |
| | ۲- په دوه رقمي عددونو د جمع مشق د انتقال نه په غیر | |
| - په توره تخته د شمېر یو جدول (۱ - ۵۰) جوړول؛ د یو مساوات لیکل لکه: ۱۳ + ۱۰ = □ د دې مساوات د حاصل د پیداکولو غوښتنه کول. (۲) | - په غور کتل، غوږ نیول، په جدول کښې د ۱ - ۱۳ پورې نقطې ښودل د یو طالب علم په ذریعه او د نورو لسو نقطو د پاره عمل جاري ساتل چې نتیجه ۲۳ شي. د دغه حاصل په بکس کښې لیکل. | توره تخته |
| - په توره تخته د مساوات ۱۳ + ۱۴ = □ لیکل؛ (۳) د شمېر د جدول (ټېبل) په مرسته د دغه مساوات د حلولو غوښتنه، د اخل د نقطو وصل کول د یو بل سره، لارښود نه کول، صرف د ضرورت په اندازه مرسته کول. (۴) | - په غور کتل، غوږ نیول، بحث کول، تجویز وړاندې کول: اول ۱۳ نقطې سره نښلول، بیا ورسره (۱۰) او بیا (۴) نقطې جمع کول، حاصل (۲۷) حسابول، په بکس کښې د هغه لیکل. | |
| - په یو بل مثال لکه ۲۷ + ۲۲ = □ په همدغه طریقه کار کول (۳) | - د دغه مساوات حلول د مخکښې په شان. | |
| - د مشق پاڼې را - ٦٠ - ۱ د مطالعه کولو په هغې کښې په کارباندې خبرې کولو او وروسته د هغې د مکملولو غوښتنه کول، مرسته کول. | - د مشق پاڼې مطالعه کول، معلومول چې دا مساوات هم په هغه طریقه حلول غواړي په کومه چې اوس اوس یو مساوات په توره تخته حل کړے شو، د مشق پاڼې مکملول، د یو اندړي وال سره ئې چک کول، ټولګي ته د نتیجې لوستل. | مشق پاڼه را-٦٠-۱ |
| | ۳- د دوه رقمي عدد تفریق ښودل او مشق پرې کول د انتقال نه په غیر | |
| - د نوي جوړ شوي شمېر جدول (ټېبل) د لاندې د مساوات ۴۹ - ۱۰ = □ لیکل؛ غوښتنه کول چې وښائي چې نتیجه څنګه پیدا کیږي. | - په غور کتل، غوږ نیول؛ د یو طالب علم د ۱-۴۹ پورې د نقطو ښودل په غیر د وصل کولو نه، د (۱۰) تفریق کول د لسو نقطو په شا ته تګ سره، د (۳۹) نتیجې ته رسېدل؛ د دغه نتیجه په بکس کښې لیکل. | توره تخته |
| - د مساوات ۴۹ - ۱۴ = □ لیکل، غوښتنه کول چې د شمېر د جدول (ټېبل) په ذریعه د مساوات حل کړے شي، لارښود نه کول، | - بحث کول، تجویز وړاندې کول: اول ۴۹ نقطې سره وصل کول، بیا په لسو نقطو چرخه راښکل، بیا په څلورو نقطو چرخه ویستل، د حاصل (۳۵) حسابول، په بکس کښې د هغه لیکل. | |
| - د پنځوسمې نقطې نه تر شپږ دیرشمې نقطې پورې نقطې وړانول چې ۳۵ نقطې باقي پاتې شي، د مساوات ۳۵ - ۲۴ = □ لیکل؛ د دې مساوات د حلولو غوښتنه کول. | - مشاهده کول، د مساوات لوستل، پته لګول چې دا په باقي پاتې نقطو سره حلېدے شي، د مخکښې په شان د دې مساوات هم حلول (اول د مکملو لسګونو تفریق کول، بیا ورپسې د یونو تونو) | |
| - غوښتنه کول چې د مشق پاڼې را - ٦٠ - ۲ مساوات دې هم په همدغه طریقه مکمل کړے شي. | - د مشق پاڼې مکملول: په خاموشۍ سره کار کول، د اندړي وال سره چک کول، د نتائجو لوستل. | مشق پاڼه را-٦٠-۲ |

| درسي پلان نمبر: ر۱ - ۶۰ | |
|---|---|

د دې درسي پلان په باب ځينې توضيحات :

۱) دلته څلور مختلف قسمه ونډائف (د کار حرالي) دي يعني ۴۰ + ۱۰ = □ ؛ ۳۰ - ۱۰ = □ ، ۳۴ + ۱۰ = □ ، ۲۷ - ۱۰ = □ استاذانوله پکار دي چې په ډېرو مساوانو کښې هم دغه يوه طريقه اختيار کړي. په دغه څلور قسمه مساواتو د مشق کولو نه پس دې استاد دا ګله ونه کړي. دا ضروري ده چې ړومبې دې شاګردانو ته د حساب کولو د پاره لږ وخت ورکړے شي، بيا دې ترتيب د حاصل (نتيجي) تپوس وشي.

۲) شاګردان دې يوې نقطې پسې باب ته اشاره کوي. شروع دې د ړومبۍ نقطې نه وکړي. داسې به دوئ هغه عدد ته ورسي کوم چې دوئ ښودل غواړي. د دې تکرار د پاره د کرښو په ذريعه د نقطو ترړل ضروري نه دي. استاد د بل مشق د پاره شمېر جدوله هم غسې استعمالولے شي.

۳) کله چې اول د وړو عددونو (۱۳ + ۱۴ = □) او بيا د لويو عددونو مساوات (۲۷ + ۲۲ = □) کړلے شي نو د دې د ښکاره کولو او د يونوي شمېر جدول د جوړولو ضرورت نشته.

۴) ماشومانو له په دوو قدمونو کښې جمع او تفريق يو معمول ګرځول پکار دي يعني ړومبې د لسيزو جمع او تفريق او بيا د يونتونو.

۵) کله چې ماشومان مشق پا تړه ته کړي نو استاد دې استعمال شوے شمېر جدول صفا کړي او د بل قدم د پاره دې نوے جوړ کړي.

| ر۱ 1-60 / ر۱ ۱-۶۰ | | |
|---|---|---|
| □ = ۱۳ + ۳۶ | □ = ۱۴ + ۲۳ | □ = ۱۲ + ۱۴ |
| □ = ۲۸ + ۱۲ | □ = ۲۲ + ۱۵ | □ = ۲۲ + ۲۷ |

| ر۱ 2-60 / ر۱ ۲-۶۰ | | |
|---|---|---|
| □ = ۱۳ - ۲۶ | □ = ۱۲ - ۲۹ | □ = ۱۳ - ۴۵ |
| □ = ۳۶ - ۵۰ | □ = ۲۳ - ۲۳ | □ = ۲۱ - ۴۲ |

د بل درسي پلان د ښودلو نه مخکښې د ورپسې درسونو خاکې

| | | |
|---|---|---|
| عنوان: ۵۰ پورې په سلسله کښې بغیر د اړولو نه د دوه رقمي عددونو د جمع مشق کول ؛ په دوو شکلونو کښې مساوات لیکل | | |
| درسي معاونات | د شاګردانو / استاد مشغلې | |
| | ١ـ ذهني مشق : ۲۰ پورې په یونیټونو کښې ، جمع او تفریق تکرارول ( د ۲۰ په قدمونو کښې ځ په وړاندې او مخ په شا شمېرل ). | [illegible] |
| | ۲ـ د استاد د ۵۰ پورې د یو جدول جوړول او تشریح کول چې په دې سبق کښې به د شمېر جدول صرف د ښودلو د پاره نه د نقطو نړلو د پاره استمالیږي. | |
| | ۳ـ یو بل پسې په دریې مساواتو کار کول لکه: ۱۳+۱٦ = □ ، ۲۲ + ۱۵ = □ ، ۱۴ + ۲۳ = □ الف : په قدمونو کښې د جمع کولو په ذریعه په شمېر جدول د مساواتو ښودل ، اوومېږ د لسیزو او بیا د یونیټونو جمع کول . ب : حاصل (نتائج) په بکسونو کښې لیکل . ج : په نوې شکل کښې د ونلا ئمنو لیکل او تشریح کول. | |
| مشق پاڼه را-٦٠-۳ | ۴ـ د دریمې مشق پاڼې پا سنه برخه استعمالول: د استاد تشریح کول چې طالب علمان به مساوات د نقطو نړلو او شمېرلو یا په یادو د حساب کولو په ذریعه حل کوي. کله چې په یادو حساب کول شي نو حاصل به ئې روستو د مساواتو مطابق د نقطو نړلو په ذریعه چیک کولے شي، نو ګکې نه د نتا ئجو لوستل . | |
| تور تخته | ۵ـ د مشق پاڼې په لاندېنۍ برخه کښې په جوړه جوړه د مساواتو حل کول ؛ د ضرورت په وخت د شمېر جدول استعمالول ؛ په تور تخته د حلونو عملي مثالونه کول . | |

| | |
|---|---|
| 3 – 60 | ر ا |
| ٣ – ٦٠ | را |

□ = ۲۸ + ۲۲

□ = ۱۴ + ۱۴

□ = ۱۷ + ۳۳

| | | |
|---|---|---|
| ۳ | ۳ | |
| ۱ | ۷ | + |

□ = ۱۲ + ۳۱

□ = ۱۱ + ۲۴

عنوان: ۵۰ پورې په سلسله کښې بغیر دا ړولو نه د دوه رقمی عدد ونو د تفریق مشق کول، په دوو شکلونو کښې مساوات لیکل.

| | د شاګردانو / استاد مشغلې | |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | ۱- ذهني مشق: ۵۰-۲۰ پورې په سلسله کښې د اړولو سره جمع او تفریق کول. | |
| | ۲- د استاد په توره تخته د ۵۰ نقطو یو شمېر جدول جوړول. تشریح کول چې په دې سبق کښې به شمېرجدول صرف د ښائیلو نه چې د نقطو ټولو د پاره استعمالیږي. | توره تخته |
| ۲۰ دقیقې | ۳- یو په یو په مساواتو کار کول لکه: ۳۷ - ۱۴ = ☐ ، ۴۴ - ۲۲ = ☐ ، ۲۵ - ۱۳ = ☐ الف: په ټولو کښې په تفریق د کار کولو د پاره مساوات په شمېرجدول ښودل، ړومبې د لسیزو تفریق او بیا د یو ګنو ټو. ب: په بکسونو کښې د نتا ئجو لیکل. ج: په نوی شکل کښې دوظائفو لیکل او تشریح کول. | |
| ۵ دقیقې | ۴- د شاګردې مشق پا ڼې پا ستخه برخه استعمالول، د استاد تشریح کول چې طالب علمان به مساوات د نقطو ټولو او چرخه کولو او شمېرلو یا په یادو د حساب کولو په ذریعه حل کوي. کله چې په یادو حساب کړے شي نو حاصل به ئې روستو د مساواتو مطابق د نقطو ټولو په ذریعه چک کړے شي، ټولګی ته د نتا ئجو لوستل. | مشق پاڼه را-۶۰-۴ |
| ۱۰ دقیقې | ۵- د مشق پاڼې په لاندینۍ برخه کښې په جوړه جوړه د مساواتو حل کول. د ضرورت مطابق د شمېرجدول استعمالول. په توره تخته د حلونو (نتا ئجو) عملی مظاهره. | |



| را | 4-60 |
|---|---|
| را | ۴-۶۰ |

۳۶ - ۱۲ = ☐

۲۷ - ۱۵ = ☐

۴۹ - ۲۹ = ☐

۴۴ - ۱۲ = ☐

۲۳ - ۱۱ = ☐

ریاضي
اول ټولګی
ر-۱-٦۱

عنوان: د هندسي (جیومتریک) اشکالو معرفي کول غونډ شکله او مکعب شکله شیزونه (۱)

| د استاد مشغلې | د شاګردانو مشغلې | درسي معاونات |
|---|---|---|
| - دیوې دونړې (چیستان) ویلو په ذریعه سبق شروع کول، ترهغه شاګردانوته اشارې ورکول چې ترڅو یې جواب موندلی نهٔ وی (۲)<br>ماسره یو شیز دے او تاسو به قیاس کوئ چې دا څه دی.<br>٥ ماشومان لې خوښوی.<br>٥. ځیني بالغان لې هم خوښوی.<br>٥. دوئ دې سره لوبې کوی.<br>٥. دا ترپېکي وهي.<br>٥. دا غونډ دے. | ۱- دیو غونډ شکله شیز معرفي کول (۱)<br>- غوږ نیول، قیاس کول، د مختلفو شیزونو نمونه اخیستل ترڅو چې دا معلومه شوې نهٔ وی چې دا پنډوس دے. | |
| - پنډوس په میز اېښودل، د پنډوسو په حقله خبرې اترې شروع کول. مثلاً څوا سره پنډوس دے؟ په پنډوس تاسو کومې لوبې کوئ؟ | - دبېلو بېلو طالب علمانو د پنډوسونو په حقله خپلې تجربې ویل - دنورو غوږ نیول، تبصره کول. | یو پنډوس |
| - دَ مخکښې په شان دیوې دونړې (چیستان) نه شروع کول. ماسره یو شیز دے او تاسو به قیاس کوئ چې دا څهٔ دی؟ (۲)<br>٥. دا هرځای استعمالیږي.<br>٥. دا د کاغذ، لرګی، فلز (دات)، یا پلاسټک نه جوړ لے شی.<br>٥. ددې مختلف سائزونه دی.<br>٥. تاسو به دې کښې شیزونه اچوئ.<br>٥. ددې کنجونه (ګوټونه) دی. | ۲- دَ یو مکعب شکله شیز معرفي کول (۱)<br>- غوږ نیول، قیاس کول، ترهغه د مختلفو شیزونو نمونه اخیستل ترڅو چې دا معلومه شوې نهٔ وی، چې دا بکس دے.<br>(داسې جوابونه هم قبلولے شی لکه اورلګیت (ماچس) یا صندوق) | |
| - صندوق په میز اېښودل، د صندوقونو په حقله خبرې اترې شروع کول. | دبېلو بېلو طالب علمانو د صندوقونو په حقله خپلې تجربې ویل. د مختلف قسمه صندوقونو بیانول، د نورو غوږ نیول، تبصره کول. | یو صندوق |
| - یو څو طالب علمان دَ ټولګي مخې ته رابلل، هغوئ ته پنډوس او صندوق ورکول (په ورو ټولګو کښې دې شیزونه په ټولو ماشومانو وګرځولے شی)<br>- د پنډوس او د صندوق په میز اېښودل، د شیزونو د مقابله کولو غوښتنه کول. | ۳- د شکل مطابق دَ شیزونو مقابله کول.<br>- د ټولګی مخې ته د طالب علمانو شیزونو ته لاس وروړل او په لاس کښې اړول راړول، د دوئ بیانول، د نورو په غور کتل، غوږ نیول.<br>- مثلاً معلومول چې پنډوس غونډ او هوار دے ددې کنجونه (ګوټونه)، او څنډې نشته. د صندوق کنجونه (ګوټونه)، او څنډې وی دا غونډ نه دے، ددې زاویې وی. | پنډوس<br>صندوق |
| - دې نه علاوه ځیني نور شیزونه په میز اېښودل (۳۰)، د شکل مطابق دَ شیزونو د ګروپونو کولو غوښتنه کول، غونډ شکله یا مکعب شکله. | - په غور کتل، شیزونه معاینه کول او معلومول: کانړے غونډ شکله دے، کتاب مکعب شکله دے او داسې نور. | قسم قسم شیزونه (۳) |
| - د مهمبه مشق پاڼې د مطالعه کولو غوښتنه کول او چې څهٔ دوئ وینی د هغې په حقله ویل. | - د مشق پاڼې مطالعه کول. | مشق پاڼه ر-٦۱-۱ |
| - د دې ویلو غوښتنه کول چې کوم شیز غونډ شکله دے او کوم شیز مکعب شکله دے (۴) | - معلومول او ویل: مثلاً پوکنړیه (بالون) غونډ شکله دے، رېړ یو مکعب شکله دے. او داسې نور | |
| - په ټکي ټکي کرښو د قلم ګرځولو په ذریعه د تصویر مکملولو او د شیزونو د رنګولو غوښتنه کول. | - په خاموشۍ کار کول، اندې وال سره لې چک کول. | |

| درسي پلان نمبر ۱- ۶۱ | |
|---|---|

د دې درسي پلان په باب څه نورې تبصرې :

۱- په دې درس کښې استاذ د څيزونو د مختلفو شکلونو د معرفي کولو دپاره پوغټ پنډوسکی او يو غټ بکس ته ضرورت لري، غونډې او مکعب ډوله اشکال د درس په شروع کښې پنډوسکی او بکس د طالب علمانو سترګو نه پټ ساتل کيږي چې ولې نه وينې، ځکه چې دا په سبق کښې په دوئمه کښې بندول کيږي.

۲- د دوئمې د ويلو نه روستو د ډېرځلې د قياس کولو دپاره استاد طالب علمانو ته وخت ورکوي. استاد به د دې قياس کولو لارښودنه په ډېرو عمومي اشارو سره کوي او ډېرو جوابونو ويلو ته به اجازت ورکوي. که چيرې يو جواب د يرې امدادي اشارې مثلاً آخري اشارې او ممکنيرا اشارو سره جوړه (اندول، کيږي نو دا به هغه وخت صحيح کمنهلې کيږي چې يو بل جواب بالکل غلط وي (مثلاً، استاد يو اشاره ورکوي او وائي چې . دغه څيز ډېر دروند دے . او يو طالب علم وائي چې . دا يو پنسل دے .) نو استاد به اشاره يو ځل بيا تکراروي او د نورو طالب علمانو نه به غواړي چې د طالب علم تجويز کړے شوے قياس دده دا شارې په نښو چيک کړي . اشاره به وار د واره اصل شي ته نزدې ورکول کيږي او دا شره به لږ تنګيږي. لږ ممکن جوابونو ته به اجازه ورکول کيږي. دهرې اشارې نه روستو به طالب علمانو ته د څيزونو د قياس کولو دپاره موقع ورکول کيږي . په آخر کښې به استاد يوه داسې اشاره ورکوي چې د هغې نه صحيح جواب په آسانه ويل کيدے شي . خو استاد به پخپله د جواب د ورکولو نه ډډه کوي.

۳- غونډه شکله او مکعب شکله څيزونه لکه يو کتاب، يو تيله، څه کانړي، يو مالټه يا نارنج او داسې نور به موجود وي.

۴- په کاره چې ماشومان د . غونډه شکله . او . مکعب شکله . اصطلاحاتو سره عادت شي . له دې وجهې نه به استاد دا يقيني کړي چې ديو څيز د تشريح کولو او د دې د دوا اصطلاحاتو د استعمالولو په موقع به طالب علمان مکملې جملې د خولې نه وباسي .



د بل درسي پلان د بنودلو نه مخکښي د ورپسې درسونو خاکې

عنوان : غوند شکله او مکعب شکله شیزونه معلومول

| درسي معاونات | د شاګردانو / استاد مشغلې |
|---|---|
| مشق پانړه ر- ٦١- ١ | ١- د نهومبره مشق پانړې د شیزونو په باب د دونړو (چیستانونو) ویئل : الف ، د ټولو طالب علمانو مشق پانړې ته کتل ، مثلاً د استاد پربښتنه کول ، ,, شکل لري غوند دے او پرتار پکښې دے . دا شهٔ شیز دے ؟ پهٔ مشق پانړو کښې د دغه شیز پوکنړیه پیدا کول . ب : د استاد طالب علمانو نه غوښتل چې همدغه شان دونړې پیدا کړي او ورلپ وائي اول پهٔ غور سره مشق پانړې ته کتل ، د یو شیز خوښول ، بیاد کتاب بندول او د دونړې ویئل ج ، د بل بل طالب علم د ونړې ویئل او د نورو قیاس کول . |
| مشق پانړه ر- ٦١- ٢ | ٢- دویمه مشق پانړه پهٔ غور کتل او پهٔ هغې کښې پهٔ کار شان پوهول : غوند شکله شیزونه پهٔ ګوټ (کُنج) کښې د پنډ وسکی سره او مکعب شکله شیزونه پهٔ مخامخ ګوټ کښې د بکس سره تړل . ٣- پهٔ خامرشه کار کول ، مقابله کول ، بحث کول ، چک کول . ٤- غوند شکله او مکعب شکله شیزونه پهٔ خپلو سلیټونو جوړول (رسمول) |

اول ټولګی درسي ورځې ١-١١-١






عنوان: د یو بکس جوړول

| | د شاګردانو / استاد مشغله |
|---|---|
| مشق پاڼو ر ١-٦١-٣ | ١- ورکوټي دوئمه مشق پاڼو مطالعه کول او پته لګول چي دوئ به دکاغذ نه یو بکس جوړوي. |
| | ٢- دکارکتاب په آخر کښي دغه دریمې مشق پاڼې شلول. |
| | ٣- د ورکوټي مشق پاڼې سره یې په کومه کښي چي بکس جوړ شوی دی مقابله کول او پته لګول چي دکوزو وزو کرښو په اوږدو شلول او د نیغو کرښو په اوږدو قط کول غواړي. |
| | ٤- استاد خپله یو ځل په منزه منزه او وضاحت سره دکاغذ د شلولو، قط کولو او د بکس د جوړولو عمل منلا هره کړي. |
| | ٥- د طالب علمانو دکاغذ شلول، قط کول، د استاد مرسته کول، کوم طالب علمانو چي خپل کار مکمل کړی وي د هغوئ مرسته کول د نورو سره |
| | ٦- د بکس بهرنۍ خوا تزئين کول: |
| | الف: د بکس مثلثه برخې جوړول (څرګندول) |
| | ب: د بکس بهرته خلاصول |
| | ج: په تخته شرې برخې بنایسته رنګول. |
| | د: بیا د بکس قط کول. |

| | |
|---|---|
| 3 - 61 | ١ر |
| ٣ - ٦١ | ١ر |





-١١٩-

عنوان: د ۱۰-۰ پورې په عددونو کار کول

| د شاګردانو / استاد مشغلې | |
|---|---|
| ۱- ذهنی تربیه ، شوتنه شاګردان د ۱-۱۰ پورې په یا دو نمبر کوی (کله مخ په وړاندې کله بیرته په شا). | |
| ۲- مشق پاڼې ر ۱-۳۲-۳ استعمالول ؛ د ماشومانو نه غوښتنه کول چې کله معلم یو نمبر (نمبر) ووائی نو تاسو به د هغهٔ مطابق بکس ته چې همدومره ټکی پکښې وی چې معلم کوم نمبر ویلے دے اشاره کوئ ؛ ماشومان پخپل منځ کښې چک کول کوی. | مشق پاڼې ر ۱-۳۴-۳ |
| ۳- د دریمې مشق پاڼې د کار د لاښئ وضاحت د پاره لاندینے مثال په توره تخته رسمول.   | توره تخته |
| ۴- مشق پاڼه داسې مکملول چې نقطې د خپل مناسب عدد سره د کرښو په ذریعه وصل شی. | مشق پاڼې ر ۱-۳۴-۳ |
| ۵- د منډې وهلو په باب خبرې کول ؛ او بیا څلورمې مشق پاڼې ته کتل. | مشق پاڼې ر ۱-۳۴-۴ |
| ۶- د منډې وهونکو د پوزیشن مطابق نمبرې لګول (چې څکښې منډه وهی د عدد ۱۰ نښه په هغه لګول). | |










-11-

ریاضي
اول ټولګی
س ۱ - ۶۳

عنوان: «نیمائی» او «څلورمې»

| داستاد مشغلې | د شاګردانو مشغلې | درسي معاونات |
|---|---|---|
| - دوه طالب علمان مخې ته رابلل<br>- دغونډې شکله ډوډۍ ښودل، پوښتنه کول چې دغو دواړو طالب علمانو ته د ډوډۍ برابرې برخې څنګه ورکولے شی.<br>- پوښتنه کول چې په مختلفو پوزیشنونو د چاقو په ایښودلو سره ډوډۍ څنګه پریکولے شی (۲)<br>په آخرکښې لب په دوه برخو پریکول او دغه نیمائی برخې ښودل | ۱- یوه ډوډۍ نیمائی کول<br>- د دوو طالب علمانو مخې ته راتلل<br>- په حل باندې خبرې اترې کول نیمائی داسې تجویز وړاندې کول چې ډوډۍ دوه برابرې برخې کړے شی. (۱)<br>- په دوه برابرو برخو د ډوډۍ د نیمائی کولو د خاصې طریقې پته لګول، په آخرکښې د طالب علمانو د ډوډۍ خوړل. | یوه غونډه شکله ډوډۍ<br>یو چاقو |
| - دوه نور طالب علمان مخې ته رابلل<br>- دیوې منړې ښودل او پوښتنه کول چې دا به څنګه په دوو برابرو برخو ووېشو<br>- د منړې غوڅول خو په مناسب یا برابر ډول نه، د دغه دوه برخو ښودل (۳)<br>- په دوه برابرو برخو د غوڅولو په ښه طریقه د خبرو لار ښودنه کول. | ۲- د نیمائی او دنا برابرو برخو تمیز کول<br>- د دوه نورو طالب علمانو مخې ته راتلل<br>- تجویز کول چې دا به په دوو برخو غوڅوو<br>- په دغه غوڅولو خبرې کول، پته لګول چې د منړې دغه دوه برخې نیمې نیمې نه دی ځکه چې سره برابرې نه دی (۴)<br>- د منړې د پریکولو مشوره ورکول، حل ته صحیح یا غلط ویل، د نیم او نیمائی کانو اصطلاح استعمالول | یوه منړه<br>یو چاقو |
| - په دوه نیمائی برخو د یوې نرۍ لښتې د ماتولو غوښتنه کول.<br>- لښته په دوه برخو ماتول او پوښتنه کول چې مونږ دا څنګه معلومولے شو چې دا برخې صحیح نیمې دی او که نه.<br>- پوښتنه کول چې دا دوه برخې بیا څنګه ماتولے شو چې د هرې یوې نه نیمائی برخې په لاس راشی. | ۳- د پولړګی (لښتې) ماتول<br>- د ماتیدو نقطو ته په اشاره کولو سره د لښتې د ماتولو تجویز کول (۵)<br>- د دغه دوو برخو د مقابله کولو چل معلومول (۶) تشریح کول او د اصطلاح کانو «برخې» یا «نیمائی» استعمالول.<br>- په حل باندې خبرې کول، ماتول، چک کول (۷) | یوه نرۍ لښته چې تقریباً یو میټروی |
| - لومړۍ مشق پاڼې ته د کتلو غوښتنه کول، ځکه چې په هغې کښې جوړ دی د هغوی په باب پوښتنه کول (ډوډۍ، منړه، خټکی، ناشپاتۍ)<br>- غوښتنه کول چې په هغو ځایونو د پنسل یوه کرښه راکاږي په کومو ځایونو چې دغه څیزونه نیمیږی.<br>- د کار کتاب په آخرکښې د مشق پاڼې د غوڅولو او په څلورو برخو هغې د شلولو غوښتنه کول<br>- بلنه ورکول چې جوړ جوړ په دې خبرې وکړي چې د قط کولو او شلولو په ذریعه ټول څیزونه څنګه نیمیږی او بیا په عمل کښې د دغه څیزونو نیمائی کول (۸) | ۴- د قط کولو او شلولو په ذریعه نیمائی کول<br>- د دغه څیزونو نومونه اخیستل او د دوی ځای (پوزیشن) تشریح کول (کیڼې خواته، ښۍ خواته، پاس، لاندې).<br>- غوښتنه چې ممکن وی په هغو احتیاط کرښه کول، د ځینو طالب علمانو مخې ته راتلل چې خپل حلونه وښائی، د نورو بحث کول، مقابله کول.<br>- د کار کتاب د آخرې برخې نه د مشق پاڼې شلول<br>- په خاص طور د څیزونو د نیمائی کولو د طریقې په موندلو خبرې کول، مقابله کول، چک کول. | مشق پاڼه ر-۶۲-۱ (د کار کتاب مخ ته)<br>مشق پاڼه ر-۶۲-۱ (د کار کتاب شاته)<br>مشق پاڼه ر-۶۲-۱ (د کار کتاب شاته) |

د دې درسي پلان په باب شوې نورې تبصرې :

١- د اصطلاح نیمه او نیمائی کانو په استعمال زور ورکړئ او څو ځله ئې تکرار کړئ چې طالب علمان د دې اصطلاحاتو سره اشنا شي.

٢- په ټولګي کښې، ډوډۍ، وښيه او په بل کښې چاقو او د دې د پرېکولو منظا هره وکړئ.

٣- یوه برخه به ئې د بلې نه په شرکند ډول لویه وي.

٤- صرف دوه برابرو برخوته نیمائی کاني ویلی شي. هرکله چې دا په منځ صحیح نه ده پرېکړې شوې، مونږ ورته صرف برخې ویلی شو، نیمائی کانې نه شو ویلی.

٥- څرنګه چې لرګي (لبنته) قدرې اوږد دي، نو د پرېکولو صحیح ځای به صرف په تخمیني ډول په نښه کېږي شي.

٦- مثلاً دا څنګ په څنګ نیول

٧- تورې تختې سره لرګي (لبنته) وښيې او په توره تخته د دې اوږدوالی نخښه کړئ بیا د هر ماشومان هغه ځای نخښه کولی شي، چرته چې دوی د لرګي منځ ویني، هلته یو کرښه را کاږئ. استاد به د دې معلومولو د پاره کافي وخت ورکوي چې لبنته (لرګي)، به چرته پرېکولی شي او د دې د چک کولو د پاره چې دا نیمائی کاني دي اوکسنه.

٨- طالب علمان دې د څیزونو اصل شکل نه شلوي خو د پانړې هغه برخه دې په دې تصویر سره مکمله کړي. هم دغسې دې پرې کرښې را کاږي او بیا دې قط کړي او د کرښو د پاسه دې وشلوي.

| را | 1-62 |
|---|---|
| را | ۱-٦٢ |





دملتنه حقیقي نه شلول کیږي





## د بل درسي پلان د بنوډلو نه مخکښې د وړیېي درسونو خاکې

عنوان: نیمائ ګانې او څلورمې جوړول

| درسي معاونات | د شاګردانو / استاد مشغلې |
| --- | --- |
| دوه ګلا سرنه ، یو ډ<br>خښتکلو د اُبو نه ډک | ۱- دبرابر سائز او شکل دوه شفاف ګلا سونه پهٔ میز اینبودل ، یو د اُبو نه ډکول .<br>۲- د دوو طالب علمانو مخې ته راتلل - د نورو نه پوښتنه کول چې پهٔ دې دوو ګلا سونو کښې به هم دغه مقدار اُبهٔ څنګه واچولے شی .<br>۳- پهٔ حل بحث کول ، پهٔ نیمائ ګانو خبرې کول . د دوؤ طالب علمانو د یو ګلاس د بل ګلاس د نیمو اُبو نه ډکول . د اُبو د مقدار د مقابله کولو د پاره د دواړو ګلا سونو څنګ پهٔ څنګ نیول ، د نورو پهٔ غور کتل - آخرکښې د دواړو طالب علمانو د اُبو د خښتکلو پهٔ ذریعه د دواړو ګلا سونو خالی کول ځکهٔ دوی اُوبه خښکل غواړی .<br>۴- داستاذ د برابر سائز او شکل څلور شفاف ګلا سونه چې یو پهٔ کښې د اُبو نه ډک دے ، پهٔ میز اینبودل .<br>۵- طالب علمانو نه غوښتنه کول چې پهٔ څلورو واړو ګلا سونو د اُبو د تقسیمولو د پاره یو طریقه تجویز کړی ، چې څلور واړه ګلا سونه هم یو شان مقدار اُبهٔ ولری . پهٔ ډېرو تجویزونو بحث کول . مثلاً ټول مېبے دوه ګلاسونه د اُبو نه نیم ډکول . پهٔ نیمائ ګانو او څلورمو خبرې کول .<br>٦- د نورو طالب علمانو هم د څلورو واړو ګلا سونو هم د دغه مقدار اُبو نه ډکول ، د ډک ګلاس د څنګ پهٔ څنګ اینبودو پهٔ ذریعه چیک کول ، بیانول لځ |
| لرګی ( لښته )<br>منږه ، چاقو<br>مشق پاڼو ر-٦٢-٢ | ۷- غوښتنه کول چې یو لښته پهٔ صحیح طریقه پهٔ څلورو برخوکښې پرې کړی<br>۸- د یو منړې پهٔ څلورو برخوکښې پرېکول .<br>۹- پهٔ درېمه مشق پاڼو بحث کول . د ګلا سونو پاسنی نیمه حصّه او لاندینی څلورمه حصه ډکول - د ګلا سونو پهٔ تصویرونوکښې د جوړولو پهٔ ذریعه چیک کول ، بیانول . |



| | |
|---|---|
| عنوان: پهٔ نیمائی کانو ، څلورمراونا برابرو برخوکښې فرق کول . | |
| د شاگردانو /استاد مشغلې | |
| ۱- د دوئمې مشق پانړې پهٔ کار بحث کول . پهٔ بکسونو د کار کولو پهٔ حقله پهٔ توره تخته مثالونه کول .<br>۲- د طالب علمانو پهٔ خاموشۍ کار کول . د بکسونو پهٔ منځ کښې د یرې کرښې راښکلو پهٔ ذریعه پهٔ وړو بکسونو کښې نیمائی کانې پهٔ ښخښه کول ( بکس دوه نیمائی کول ) د دوو کرښو راښکلو پهٔ ذریعه څلور برخې کول یعنې پهٔ بکسونو کښې چرخه کول ( بکس څلور برخې کول ) .<br>۳- پهٔ نتائجو بحث کول .<br>۴- پهٔ څلورمه مشق پانړه د کار کولو پهٔ حقله بحث کول ، د دریمې مشق پانړې پهٔ شان نیمائی کانې او څلورمې جوړول - دې نه علاوه د ټولو وړو بکسونو تورول کهٔ پهٔ تصویر کښې ښودلے شوې برخې نهٔ نیمې وی اونهٔ څلورمې . | مشق پانړه را-۶۲- ۳<br><br><br><br><br><br>مشق پانړه را-۶۲- ۴ |








ریاضي
اول ټولګی
۱-۱-۶۳

عنوان: د ټولو پاکستاني سیکو معرفي کول ، په سیکو حساب (شمېر) کول (۱)

| د استاد مشغلې | د شاګردانو مشغلې | درسي معاونات |
|---|---|---|
| | ۱- دَ سیکو د پېژندلو کوشش کول . | |
| - یوه سیکه ښودل چې هر قسم وي ماشومانو ته ددې سیکې او د نورو په حقله د خبرو کولو موقع ورکول . | - په غور کتل ، معلومول چې دا یوه سیکه ده . د مختلف قسمه سیکو نومونه اخیستل چې دوئ یې پېژني . | یوه سیکه |
| - په سیکو د عددونو د معلومولو غوښتنه کول . د طالبعلمانو دوئیلو شوو عددونو په لحاظ ترتیبه اندازکېږي په تورة تخته لیکل (۲۱۰) | - د مختلف عددونو نومونه اخیستل چې دوئ یې پېژني . معلومول چې دا عددونه ارزښت (قیمت) ښائي . | توره تخته |
| - پوښتنه کول .<br>• په کومه سیکه دوئ ډېر څه اخیستې شي .<br>• په کومه سیکه دوئ لږ څه اخیستې شي<br>• د قیمت مطابق سیکې په ترتیب کول .<br>• په توره تخته د دوئ په صحیح ترتیب کښې لیکل . | - د زیاتې قیمتي او د کمې قیمتي سیکې په حقله وئیل . بحث کول او د قیمت مطابق د ترتیب معلومول . استاذ ته په توره تخته د سیکو په ترتیب سره د لیکلو په حقله وینا کول . | توره تخته |
| - د ښودل مشق پاڼې د یاسنې برخې مطالعه کول او دهغې سیکې معلومول چې تراوسه پورې ذکر شوې نه ده . پوښتنه کول چې دا ټولې پوښتان ښکاره کنه . | - د سیکو تصویرونه مطالعه کول . د هغې سیکې معلومول او نوم اخیستل چې تراوسه پورې یې ذکر نه د سیکو معلومول چې دَ پنځو او لسو پیسو د سیکو شکل پوښتان سره ، د شکل تشریح کول . | مشق پاڼه ر-۶۳-۱ |
| - په توره تخته د سیکو دَ مجموعې مکملولو او عددونو ته چاپېره د سیکو د شکل جوړولو غوښتنه کول . | - دځانله ځانله طالب علمانو په خپلو ځایونو کښې غیب عددونه لیکل . او د متعلقه عددونو ته چاپېره د متعلقه عددونو د سیکو شکل جوړول ، د نورو مشاهده کول ، تبصره کول ، اصلاح کول . | توره تخته |
| - آزلګی ته دَ مختلفو سیکو د ترتیب دَ لوستلو غوښتنه کول . | - په ځکاه لوستل | |
| | ۲- د درسي معاوناتو (یعنې د کاغذي سیکو) سره واقفیت پیدا کول | |
| - د کار د کتاب په آخر کښې د سیکو د تصویرونو د مجموعې د مطالعه کولو او ددې د استعمال د ښودلو په حقله غوښتنه کول | - د دغه دوه صفحو مطالعه کول ، موندل چې د دغه دوه صفحې ټولې موجودې سیکې لري او دا شلولې کېدې شي . | مشق پاڼه ر-۶۳-۲ (دوه صفحې) |
| - دَ صفحو د شلولو او ټکړو په احتیاط سره د شلولو او هم د دغه قیمت سیکو سره لځ په سلېټونو د کېښودلو غوښتنه کول ، مرسته کول . | - په خاموشۍ کار کول ، شلول ، قط کول ، په انبارونو د کاغذي سیکو ترتیبول . | سلېټونه |
| | ۳- د سیکو په ذریعه حساب کول . | |
| - په توره تخته په یو بکس کښې یو عدد مثلاً [۱۱] لیکل د دې عدد د جوړولو د پاره د سیکو موندلو او ددې په منځکښې ددې سیکو د کېښودلو په حقله غوښتنه کول . | - په توره تخته عدد ته کتل ، غور نیول . د خپلو سیکو مطالعه کول ، سیکې موندل لکه :<br>۲ ⟨۵⟩ او (۱)<br>۱ ⟨۱۰⟩ او (۱) او داسې نور | توره تخته |
| - د دوئ د حلونو غوښتنه کول ، مختلف حلونه په توره تخته لیکل .<br>- په نورو مثالونو کار کول لکه ،<br>[۲۱] ، [۱۴] ، [۳۱] | - د بېل بېل طالبعلم خپل خپل حل وئيل . د نورو تبصره کول او د خپلو حلونو وئيل<br>- د حساب (شمېر) کول د منځکښې په نښان عمل کول | توره تخته |
| - وئیل چې د بل سبق د پاره ، سیکې ، یوځای کېږدئ . (۳) | - د کاغذ قط شوې ټکړه کښې ، سیکې ، کېښودل . | |
| - د ښودل مشق پاڼې د لاندینۍ برخې د مطالعه کولو غوښتنه کول . په ښودل مثال کار کول | - د مشق پاڼې مطالعه کول ، د کار موندل ، په شلولو سیکو کښې به د رعب همېشه په بکس کښې د عدد سره برابرې وي . په استعمال شوو سیکو دا (س) نخښه لګول او چې کومې استعمال شوې نه وي په هغو چرخه کول . | مشق پاڼه ر-۶۳-۱ |
| - د مشق پاڼې د مکملولو او ددې پر انځور وال سره د مقابله کولو غوښتنه کول . | - د مشق پاڼې مکملول ، پر انځور وال سره لځ مقابله کول . | |

د دې درسي پلان په باب ځينې نورې تبصرې :

۱- که ممکنه وه نو استاد دې د ټولو پاکستاني سيکو يو يو نمونه د ښودلو او د سيکو د تصويرونو سره د اصلي سيکو د نمايشه کولو د پاره ولري.

۲- استاد له په کار ده چې په دې مرحله کښې صرف هغه عددونه چې غير د سيکو د تصويرونو نه وليکي کوم چې زده کړې جوړې کړې دي. کيدے شي چې د وړو ځينې عددونه پريږدي. ورسته به طالب علمان د سيکي (عددونه) په مشق پانړه کښې پيدا کړي. په انفرادي سټوړونو کښې به د پاکستاني سيکو ښودل د افغاني طالب علمانو د پاره يو څه ترددو (وارخطائي) پيدا کړي ځکه چې په دغو سيکو د پښتو نمبرې (۱، ۲، ۵، ۱۰، ۲۵، ۵۰) په ځاى د انګريزي نمبرې (50، 25، 5، 10، 2، 1) دي ديرې خوا طالب علمانو ته معمولاً پښتو عددونه ښودلے شي. خو د بله طرفه به ورځنۍ ژوند کښې د وړو په سيکو باندې انګريزي نمبرې وينې. د سيکو او د صفرونو د ارزښت (قيمت) په پيژندلو کښې به استاد د يرې لارې په پيدا کولو سره د شاګردانو مرسته کړي. بغير د دې نه چې ټول انګريزي عددونه ورته وښودل شي.

۳- درسي معاونات (سيکې) به په راتلونکو سبقونو کښې هم استعماليږي له دې وجهې نه به شاګردانو ته وييلے کيږي چې خراب ئې نه کړي او بيا ئې وساتي. کله چې دا درسي پوړنه ختم شي نو استاد به دا درسي معاونات (سيکې) د طالب علمانو نه راجمع کړي او په تيله يا بکس کښې به ئې د بل ځل استعمال د پاره اچوي.



د بل درسي پلان د ښوونکو د وړیسي درسونو خاکې

عنوان: د سیکو تبادله کول . په سیکو حساب کول

| درسي معاونات | د شاګردانو / استاد مشغلې |
|---|---|
| سلېټونه، کاغذي سیکې | ۱- د مختلفو سیکو نومونه اخیستل، د قیمت (ارزښت) تشریح یې کول<br>۲- په خپلو سلېټونو باندې سیکې د قیمت (بها) په بنیاد انبار انبار کول د طالب علمانو له خوا ۱۲ انبارې د ۷ مختلفو قسمونو سیکو د پاره).<br>۳- د طالب علمانو شمېرل او نتیجې (حاصل) یې راویستل (د هر انبار) نتیجې مقابله کول<br>۴- د غټو سیکو د بدلولو امکانات لټول په وړو وړو سیکو کښې: |
| تور تخته | الف: د استاد په تور تخته د ترتیب سیکې جوړول، شروع د ۵۰ نه کول<br>ب: د طالب علمانو د خپلو خپلو وړو وړو سیکو ایښودل په سلېټونو چې د غټې سیکې (۵) سره د همغې قیمت جوړه (اندول) کړي ؛ ج: مختلف حلونه مقابله کول، په تور تخته د همغو مختلفو امکاناتو (حلونو)، لیکل د استاد له طرفه کوم چې طالب علمانو پیدا کړي دي. د: په نورو سیکو لکه ۱۰، ۲۵، ۵۰ پیسو او یوه روپۍ (۱۰۰ پیسې) سره جاري ساتل. |
| مشق پاڼې ر ا-۶۳-۳ | ۵- درېیمه مشق پاڼه استعمالول. الف: د اول مثال په ذریعه په کار څان پوهول. (همغه درې سیکې موندل چې څه پیسې ترې جوړېږي او په خالي بکسونو کښې د همغوی رسمول). ب: د مشق پاڼې مکملول، د بېرانه وال سره کار کول. ج: چک کول مقابله کول. |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ر ا \| 3 — 63<br>ر ا \| ۳-۶۳ | | | | | |
| | | | | | |
| | | | | | |
| | | | | | |
| | | | | | |

عنوان: د پیسو (سیکو) د ماتولو یوه لوبه کول

| | د شاګردانو / استاد مشغاې | |
|---|---|---|
| | ۱- د هر طالب‌علم خپلې خپلې سیکې په ترتیب کول (د هغو سیکو انبار چې پرېشان بها (قیمت) لري) | کاغذی سیکې |
| | ۲- د پیسو (سیکو) د ماتولو یوه لوبه کول : الف، ګروپونه جوړول چې په هر یو کښې څلور څلور طالب علمان وي . یو طالب علم به د پیسو اخیستو والا وي او نورلې ورکوټې سیکې به ورسره وي (۱، ۲، ۵، ۱۰، ۵۰پیسې) په انبار انبار کښې یې ترتیب کول . نور طالب علمان د پیسو اوړونکي [illegible] سیکې لري . ب ، یو په بل پسې د ګروپ د غړو راتلل چې خپله یوه سیکه په وړو وړو سیکو بدله کړي .[ د پیسو اخیستو والا یا په خپله خوښه پیسې ماتوي یاد نورو طالب علمانو په خوښه ] . دغه یاد [illegible] ځله نه وروسته بل طالب علم د پیسو اخیستو والا جوړېږي . ج : د یو ځه وخت نه وروسته به د پیسو اخیستو والا سره غټې سیکې جمع شي . او س نو کېدے شي چې د پیسو بدلول په برعکس (اړوله) ډول هم وشي : د ګروپ د یو غړي د وړې سیکې په غټه سیکه بدلول . | |
| | د : د لوبې په آخر کښې سیکې په څلورو داسې ګروپونو ویشل چې د هر ګروپ ارزښت (قیمت) یو شے وي تر څو چې هر طالب علم د خپلو سیکو شمېر بېرته حاصل کړي . | |
| | ۳- څلورمه مشق پاڼه مطالعه کول . په کارځان پوهول ، په خاموشۍ سره کار کول ، په بکس کښې د د هر یو سیکو ټول قیمت (بها ، لیکل نتائج یو ځای نه لوستل . | مشق پاڼه ۱ر-۶۳-۴ |



| ریاضي<br>اول ټولګی<br>۳-۱-۶۴ | عنوان: عمومي تکرار، شمېرکول، په صحیح ترتیب عددونه ایښودل |
|---|---|

| د استاد مشغلې | د شاګردانو مشغلې | درسي معاونات |
|---|---|---|
| | ۱- ذهني مشق | |
| - ۱۰۰ پورې شمېرکولو دپاره لس طالب علمان مخې ته رابلل. په تېزه د شمېرکولو او په وضاحت سره د خبرو غوښتنه کول. | - د لس طالب علمانو مخې ته ودرېدل. د اول طالب علم د ۱-۱۰ پورې شمېرل، د دویم د ۱۱-۲۹ پورې، د درېیم د ۲۱-۳۰ پورې او داسې نور تر ۱۰۰ پورې | |
| - هم د دې مشق دپاره لسو نورو طالب علمانو نه غوښتنه کول | - د مخامخ ولاړو لسو نورو طالب علمانو د مخکښې په شان شمېرل. | |
| - د معکوس په شان شمېرکولو دپاره نورو طالب علمانو نه غوښتنه کول. د لسو طالب علمانو مخې ته د رابللو انتخاب کول. | - د لسو طالب علمانو شمېرل، د لومړي د ۱۰۰ نه ۹۰ پورې د دویم د ۸۹-۸۰ پورې د درېیم د ۷۹-۷۰ پورې او داسې نور د ۹-۱ پورې یا د ۹-۰ پورې | |
| - لسو نورو طالب علمانو نه غوښتنه کول چې مخې ته راشي. په قطار ودرېږي او همیشه د صرف یو یو عدد ویلو په ذریعه تر ۱۰۰ پورې شمېر وکړي. د اول طالب علم ۱۰، د دویم ۲۰ او داسې نور ویل. بیا د ۱۱ نه جارې ساتل او داسې نور. | - د لسو طالب علمانو په یو قطار ودرېدل او همیشه د مخې عدد ویل چې ورپسې یې وارو ي. | |
| - طالب علمانو نه غوښتنه کول چې هغه عددونه چې دوئ ویلي دي، بیا واوروي. (۱) | - هم د هغه یو نیم نو عددونه بیا اورول کوم چې دوئ ویلي وي لکه: ۳، ۱۳، ۲۳، ۳۳ او داسې نور د اعدادونه ویل<br>۲- د استاد له خوا ویلي شوي عددونه لیکل. | |
| - ۲۰-۱۰۰ پورې په سلسله کښې یو بل پسې په منځ منځ د ۶ عددونو املا ویل. (د ځان دپاره د کاغذ په ټکړه عددونه نوټ کول) (۲) | - د پاسني قطار د ښي بکس نه شروع کول او په بکسونو او سلېټونو په غور سره د عددونو لیکل. | |
| - دیر طالب علم نه غوښتل چې ۶ عددونه د خپل سلېټ نه په منځ منځ ټولګي ته وښيي او بل طالب علم به یې په توره تخته په بکسونو کښې لیکي. | - دیر طالب علم د سلېټ نه ټولګي ته لوستل، د یو بل طالب علم لیکل په توره تخته، د نورو چک کول، تبصرې پرې کول، اصلاح کول | |
| - د دغه مشق تکرارول د نورو بکسونو او عددونو په ذریعه. | - د مخکښې په شان عمل کول.<br>۳- په صحیح ترتیب کښې عددونه لیکل. | |
| - لکه څنګه چې په لومړي مشق پاڼه کښې ښودلي شوي دي، په توره تخته د عددونو د ۶ خالي بکسونو قطار په خوا کښې جوړول. بکسونو او عددونو ته بغیر د تبصرې کولو اشاره کول (۳) | - مشاهده کول، د کار کولو تجویز وړاندې کول، معلومول چې عددونه به د دوئ د قیمت مطابق ترتیبولې شي. | توره تخته |
| - د طالب علمانو نه غوښتنه کول چې د قیمت مطابق د عددونو نوم واخلي، د دوئ په متعلقه بکسونو کښې لیکل او د لیکلو نه پس یې چرخه کول. د لږ کي عدد نه شروع کول. | - د بېل بېل طالب علم د کار حل کول (د یو طالب علم یو عدد)<br>• مخې ته راتلل<br>• عدد ته اشاره کول<br>• نوم یې اخیستل<br>• په صحیح بکس کښې یې لیکل<br>• د وړکي نه شروع عددونو نه دا عدد چرخه کول، د نورو چک کول. | |
| - په دې ترتیب کښې د عددونو د لیکلو وضاحت غوښتنه کول څکه ضرورت وي په ویلو کښې ورسره مرسته کول. | - کاوندې بکسونو کښې د عددونو سره د یو یو عدد مقابله کول د جملو معلومول لکه: ۲۴ د ۲۳ نه کم دی خو د ۶ نه زیات دی | |
| - د لومړي مشق پاڼې د مطالعه کولو او د کار د حل کولو غوښتنه کول، مرسته کول.<br>- د حلونو د مقابله کولو غوښتنه کول. | - د مشق پاڼې مطالعه کول - په کار ځان پوهول او په صحیح بکسونو کښې د عددونو لیکل، څنګه چې په توره تخته په مثال کښې ښودل شوي دي<br>- د ځانله ځانله طالب علمانو په بکسونو کښې عددونه په منځ منځ ټولګي ته لوستل، مقابله کول، چک کول. | مشق پاڼه ۳-۱-۶۴ |

| درسی پلان نمبر ۱/ - ٦۴ | |
| --- | --- |

د دې درسي پلان په باب خپلې نورې تبصرې :

۱- په تيار کړې شرو بکسونو کښې داعدادو داملا ليکل دا فائده لري چې عددونه په آسانۍ سره چک کېدے شي .

۲- ددې دپاره چې د وار شطالت ( معنترشيت ) نه بچه وشي نو په کاردہ چې استاد روسته د خپل ځان دپاره د غه عددونه د چک کولو دپاره وليکي .

۳- طالب علمان به ددې جرګه شي چې په خپله دوئ دا حلونه پيدا کړي چې عددونه د قيمت په لحاظ ترتيب کېدے شي . استاد به حوصله ولري او په خپله به حل نه وائي .

| ۱/ | 1-64 |
| --- | --- |
| ۱/ | ۱-٦۴ |

| | | | | | | |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| ٦ | ٢۴ | ۴٣ | | | | ٩٠ ١٢ [illegible] ٦٣ ۴٣ [illegible] |
| ٢ | | | | | | ٢٩ ١١ ٥٠ [illegible] ۴٦ ٣١ |
| ٥ | | | | | | ٩ [illegible] ٨ ١٦ [illegible] ١٠ |
| | | | | | | ٩٩ [illegible] ٨٨ ٥٦ ٧٥ ۴٣ |
| | | | | | | ٦٠ ٨٠ ٢٠ ۴٠ [illegible] |

| ریاضي<br>اول ټولګی<br>ر ا - ۳۵ | عنوان، د ۱۰-۰ پورې عددونه استعمالول؛ د عدد مخکښې او عدد روسته سره اشناکېدل؛ په مختلفو سلسلو سره شمېر جاري ساتل. | |
|---|---|---|

| د استاد مشغلې | د شاګردانو مشغلې | درسي معاونات |
|---|---|---|
| | ۱- په سلسله کښې د روستنو او مخکینو عددونو پیدا کول | |
| - د ۰-۱۰ پورې یوولس عددي کارډونه په شاګردانو باندې ویشل. | - کارډونه اخیستل، د نورو مشاهده کول | د ۰-۱۰ پورې د اعدادو کارډونه کاغذ نیوونکی |
| - یو ماشوم مخې ته راغوښتل چې خپل کارډ د هولډر (نیوونکی)، په منځ کښې کېږدي مثلاً د عدد ۶ کارډ (۱)، | - څنګه چې ترې غوښتنه شوې ده هغه خپل کارډ په هولډر (نیوونکی) کښې ایښودل. | |
| - د عدد ۶ نه د وړاندې او روستو عددونو په باب پوښتنه کول. | - غوږ نیول او د صحیح عدد کارډ پیدا کول؛ کوم ماشومان چې د عدد ۷ او عدد ۵ کارډونه لري د اول عدد (۶)، په اړخونو کښې ئې په هولډر کښې ایښودل. | |
| - څو څو ځله د دې مشق تکرارول (۲)، | - بېل بېل شاګردان خپل عددونه په صحیح پوزیشن سره بږدي. | |
| - د عددونو ۱ او ۹ په منځ کښې یو عدد په توره تخته لیکل، غوښتنه کول چې د دغه عدد نه د یو عدد مخکښې او یو عدد روسته نمونه واخلي. | - د مخکینی او روستني عددونو نمونه ئې اخیستل. بیا په صحیح پوزیشن (ځای)، کښې د هغوئ په توره تخته لیکل. | توره تخته |
| | ۲- د صحیح سلسلې په پیدا کولو کښې نور مشق | |
| - د ماشومانو نه غوښتل چې خپلې سترګې پټې کړي، د کارډونو آخرنۍ پسې ته په هولډر کښې بدل ترتیب ورکول یعني چې د سلسلې ترتیب ئې غلط شي لکه ۵، ۶، ۷. | - د سترګو پټول. | د ۰-۱۰ پورې د اعدادو کارډونه کاغذ نیوونکے |
| - د ماشومانو نه غوښتنه کول چې کارډونو ته وګوري او بیا ترتیب ورکړي. | - مشاهده کول او کارډونه بېرته په صحیح سلسله کښې ترتیبول. | |
| - د ۰-۱۰ پورې ټول عددونه استعمالول او مشق څو ځله په مختلفو سلسلو سره تکرارول (۳)، . | - بیا ترتیبول، چیک کول. | |
| | ۲- د ۱۰ پورې د شیزونو په شمېرلو کښې مشق | |
| - د ماشومانو نه غوښتنه چې مشق پاڼه را-۳۵-۱ مطالعه کړئ. | - غوږ نیول، مشاهده کول او د کار معلومول. | مشق پاڼه را-۳۵-۱ |
| - د ماشومانو نه غوښتنه کول چې مشق پاڼه د صحیح شمېر شیزونو په نښه کولو سره مکمله کړي د ۱-۱۰ پورې د عددونو ترتیب په کار اچول او عدد په ځوا کښې په خالي بکس کښې لیکل. | - د مشق پاڼې مکملول، متابله کول، چیک کول، خبرې اترې کول. | |
| - غوښتنه کول چې په هره کرښه کښې د تې شنه شیزونه وشمېري چې نور (سورکه) شوي نهٔ دي. | - د شیزونو شمېرل، شمېرې وئیل ځوړنهٔ به لیکل کېږي. | |



-12-

د بل درسي پلان د بنوونځیو نه مخکښې د ورپسي درسونو خاکې

| عنوان: عمومي تکرار: د عددونو جمع کول او تفریق کول | |
|---|---|
| **د شاګردانو / استاد مشغولا** | **درسي معاونات** |
| ۱- ذهني تربیت:<br>الف: د ۲۰ پورې جمع کول. مثلاً د استاد ویل: ۱۵، د طالب علمانو معلومول: ۱۵ + ۵ = ۲۰<br>ب: د لسو څخه منځ بنکته تفریق کول. مثلاً د استاد ویل، ۱۶، د طالب علمانو ویل ۱۶ - ۶ = ۱۰<br>۲- د دویمه مشق پاڼو استعمالول:<br>الف: په بنی کالم (ستون) باندې په تورو تخته کار کول، د جمع او تفریق د منو مسائلو پیدا کول د طالب علمانو په ذریعه چې حاصل لې ۶۰ کیږي.<br>ب: د طالب علمانو په شامرشي سره کار کول، کالم په کالم (ستون) لې ځ کول، د هر ستون (کالم) د ځ کولو نه وروسته لې دیوانۍ وال سره متابله کول، د استاد چک کول او مرسته کول په جانب ځول مسائل شکه چې د هر یا شوم سره به مسارات په مختلفو ترتیبونو وي.<br>ج: ځول تړلکی ته د نتیجو لوستل - یو ماشوم یو کالم (ستون) | مشق پاڼو ر/ ۶۴-۲ |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ر/ 2-64<br>ر/ ۲-۶۴<br>= ۱۷ | = ۱۰ | = ۱۴ | = ۱۳ | = ۹ | = ۶ |
| + | + | + | + | + | ۱ + ۵ |
| + | + | + | + | + | + |
| + | + | + | + | + | + |
| − | − | − | − | − | ۱۰ − ۴ |
| − | − | − | − | − | − |
| − | − | − | − | − | − |

| | |
|---|---|
| عنوان: عمومي تکرار: جمع کول، تفریق کول او ددې برعکس عملیې (مساوات) پیدا کول | |
| د شاګردانو / استاد مشغلې | |
| ۱- ددویمې مشق پاڼې د سر د بنې اړخ په ډول مساواتو په تورې تختې یوه یو کار کول، داستاد په توره تخته د مساوات لیکل، د طالب علمانو د عددی قصې مرندل او د مساوات حلول عددی قصې به داسې وی لکه، «په اول کښې ۴ دی بیا ۷ ورسره نور پرځای کیږی، او س نو ...... کیږی» «په اول کښې ۱۰ دي بیا څه نور ورسره پرځای کیږی چې په آخرکښې ۱۸ کیږی، موږ ته پته نه لګیږی چې کوم یو عدد وو خو چې عدد ۶ ورسره جمع کړے شو عدد ۱۲ ترې جوړ شو» ۲- د مشق پاڼې د بنې اړخ مساوات حلول، په خاموشۍ کار کول، دیرانډۍ وال سره یې مقایسه کول، ټول ټولګی ته د نتیجو لوستل. ۳- د مشق پاڼې په کیڼ اړخ کښې په ډول مثالونو (مساواتو) کار کول په خاموشۍ سره د پړمبی قدم په شان (د عددی قصې د ویلو په شمولیت). ۴- د باقی پاتې مساوات حلول، د دویم قدم په شان کار کول. | مشق پاڼه ر-۶۴-۳ |

| | |
|---|---|
| ۴ + ۷ − □ | ۱۲ − ۶ = □ |
| ۱۰ + □ − ۱۸ | ۱۲ − □ = ۹ |
| □ + ۶ = ۱۲ | □ − ۱۰ − ۱۰ |
| ۲۲ + ۱۵ = □ | ۳۸ − ۷ = □ |
| ۲۹ + □ − ۳۹ | ۲۶ − □ − ۱۶ |
| □ + ۷ = ۴۸ | □ − ۹ = ۴۰ |
| ۴۰ + ۱۰ − □ | ۸۰ − ۶۰ = □ |
| ۲۰ + □ = ۴۰ | ۵۰ − □ = ۱۰ |
| □ + ۳۰ = ۵۰ | □ − ۷۰ = ۰ |

په کار ده چې مشق پاڼې ر-۶۴-۴ او ط-۶۴-۵ د نور تکرار او مشق د پاره استعمال کړے شی:
خلورمه مشق پاڼه د اپوټه (معکوس) مساواتو د جوړولو او حلولو د پاره ده مثلاً: ۶+۷= □
او □-۷=۶

پنځمه مشق پاڼه ددې د پاره ده چې د هغې په خالی بکسونو کښې صحیح عددونه ولیکلے شی. ټول هغه عددونه چې ورته ضرورت وی لاندې په لوئی بکس کښې دی. هر نمبر چې خالی بکس کښې لیکلے کیږی نو په لوئی بکس کښې به پرې چرخه را بنکلے کیږی.

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱۰ | | ۸ | ۷ | ۶ | ۵ | ۴ | ۳ | ۲ | ۱ |
| | | | | | | | | | ۱۱ |
| | | | | | | | | | |
| | | | | | | | | | ۴۱ |
| | | | | | | | | | |
| | | | | | | | | | |
| | | | | | | | | ۷۲ | ۷۱ |
| | | | | | | | | | |
| ۱۰۰ | | | | | | | | | |

۹۱ ۹۶ ۱۸ ۲۱
۶۹ ۶۰ ۵۸ ۱۱ ۵۴ ۷۶ ۶۶ ۴۰ ۵۶
۲۶ ۲۲ ۷۴ ۷ ۸۶ ۸۱ ۵۰ ۶۳
۹ ۸۴ ۲۱ ۲۰ ۳۲ ۱۳ ۸۰ ۹۸ ۴۲ ۳۱ ۱۲

| | |
|---|---|
| ۶ + ۷ = □ | □ − ۷ − ۶ |
| ۱۶ + ۴ = □ | □ − ۴ − ۱۶ |
| ۱۲ − ۵ = □ | □ + ۵ − ۱۲ |
| ۲۰ − ۹ − □ | □ + ۹ − ۲۰ |
| ۲۲ + ۱۷ − □ | □ − □ = ۲۲ |
| ۲۶ − ۱۱ − □ | □ − □ − ۲۶ |

| درسي پلان نمبر: ر ۱- ۳۵ | |
|---|---|

د دې درسي پلان په باب ځینې نورې تبصرې :

۱) هولډر (نیورونکی) د یو کاغذ یا د کلکې کتې نه، کوم چې پیدا کیږي، جوړ کړه. د کاغذ یا کتې لاندېنۍ خوا پورته خواته قط کړه چې یو جیب غوندې جوړ شي او کارډونه پکښې ایښودل کېدی شي. په کارډونو باندې ټول عددونه به د سترګو نه پناه نه وي بلکې به لیدل کیږي. هولډر (نیورونکی) په دېوال یا توره تخته ولګوه.

7 6 5

۲) کله چې عدد "۰" یا "۱۰" د هولډر په مخ کښې ایښودل کیږي نو یوه خوا به خالي پرېښودل کیږي.

۳) ماشومان د استاد په شان عمل کولی شي. همېشه به درې کارډونه استعمالوي او کارډونه به په غلط ترتیب ږدي.

| ر ۱ | 35 — 1 | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ر ۱ | ۱ — ۳۵ | | | | | | | | | | |
| ۱ | | | | | | | | | | | |
| ۲ | | | | | | | | | | | |
| | | | | | | | | | | | |
| | | | | | | | | | | | |
| | | | | | | | | | | | |
| | | | | | | | | | | | |
| | | | | | | | | | | | |
| | | | | | | | | | | | |
| | | | | | | | | | | | |
| | | | | | | | | | | | |

## د بل درسي پلان د ښودلو نه مخکښې د وړیې درسونو خاکې

| | | |
|---|---|---|
| | عنوان: د عددونو د سلسلې مشق کول | اول صنف درسي مادې ر۱-۳۵-۲ |
| درسي معاونات | د شاګردانو / استاد مشغلې | |
| تنظ شوي عدد پانړه<br><br>مشق پانړه ر۱-۳۵-۲ | ر د دې سبق د پاره به د یرې اوږدې ټوټې کاغذ نه د عدد شریه پانړه ، جوړول کیږی او د هغې په اوږدو کښې به د ۰-۱۰ پورې عددونه ښځه غوټه لیکل کیږی. بیا به دا د عدد نړیه پانړه ، داسې قط کیږی چې یرا ځې یو عدد په یروخت کښې ورباندې لیدل کیدے شی. دا عدد پانړه به د نورو دېرو مشقونو د پاره چې روسته راځی دېره ګټوره وی.<br>۱- په عدد پانړه کار کول:<br>استاد ماشومانو ته یو عدد ښئی او د هغه نه د مخکښې او د روسته عددونو پوښتنه د هغوی نه کوی. عدد پانړه به داسې قط کول کیږی چې یو شل ددغه عدد نه مخکښې عدد او بل ځل په قط کولو سره ددغه عدد نه روسته عدد را ښکاره شی. په دېرو عددونو سره ددې مشق خو خو ځله تکرارول. بیا عدد پانړه په د براله یا توره تخته لګول چې شاګردان ورسره بلد شی. عددونه به د ۰-۱۰ پورې ټول په یو وخت لیدل کیدے شی.<br>۲- د ریئمه مشق پانړه استعمالول: خالی ځایونه صحیح ډکول. دا ندې واله سره د خپل کار چک کول. د استاد مدد کول (د مشق پانړې د آخری نیمائی برخې په شپږو مشقونو کښې به منځنے عدد اول پیدا کول کیږی) | |

| ر ا | 2-35 |
|---|---|
| ر ا | ۲-۳۵ |

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | ٦ | | | ٣ | | ٨ | ٧ | ٦ |
| | ٩ | | | ١ | | | ٥ | |
| ٤ | | | ١٠ | | | ٢ | | |
| | | ٣ | | | ٧ | | | ٨ |

ر ۱-۳۵

عنوان: د دوو پهٔ ټوپ (قدم) د شمېرکولو مشق

| | د شاګردانو / استاد مشغلې |
|---|---|
| مشق پاڼه را-۳۵-۳ | ۱- دریم نمبر مشق پاڼې نه کار اخیستل. د ماشومانو نه غوښتل چې پهٔ اول مار کښې عددونه ولیکی مثلاً عددونه ۶،۴ او داسې نور. بیا د دوه دوه په ټوپ پهٔ بیا دو شمېرلو غوښتنه، شروع د صفر(۰) نه کول |
| | ۲- د پاس پهٔ شان دویم مار مکملول او د دوو پهٔ ټوپ (قدم) سره شروخله پهٔ یادو شمېرکول. شروع د ۱۔ نه کول. د ماشومانو ړا د ګیرنه کول چې مخ پهٔ شا د دوو دوو پهٔ قدم شمېر وکړی. |
| مشق پاڼه را-۳۵-۴ | ۳- د څلورمې مشق پاڼې نه کار اخیستل: د ماشومانو نه غوښتنه کول چې د ورکړے شوی مثال پهٔ رنګ کښې بکسونه پهٔ سلسله سره وتړی (د دوه دوه پهٔ ټوپ.) (دا پهٔ یاد لره چې قدمونه به همېشه د دوو دوو پهٔ فاصله وی.) |

| 3-35 | ر۱ |
|---|---|
| ۳-۳۵ | ر۱ |

| 4-35 | ر۱ |
|---|---|
| ۴-۳۵ | ر۱ |

| | |
|---|---|
| عنوان: د ۱ - ۱۰ پورې عددونه متابله کول | ریاضی<br>اول ټولګی<br>ر۱-۳٦ |

| د استاد مشغلې | د شاګردانو مشغلې | درسی معاونات |
|---|---|---|
| | **۱- د شیزونو شمېر متابله کول** | |
| - غوښتنه کول چې مشق پاڼه ر۱-۳٦-۱ ولولئ او چې څه وینئ هغه وښایئ.<br>- غوښتنه کول چې د کتابونو شمېر د ماشومانو د شمېر سره متابله کړئ او که څه مسئله وی نو د هغې د حل لار پیدا نه اوکړئ.<br>- د مختلف شمېر کتابونو یا نورو شیزونو او طالب علمانو سره د هم داسې صورت حال د عملی مظاهرې کولو په حقله مرسته:<br>مثلاً: ۴ طالب علمان - ۲ کتابونه<br>۸ طالب علمان - ۴ کتابونه<br>۳ طالب علمان - ٦ کتابونه<br>۹ طالب علمان - ۲ کتابونه | - مشق پاڼه لوستل او د دې په حقله خبرې کول.<br>- د کتابونو او د ماشومانو شمېرل، فرق معلومول، حل تجویز کول مثلاً نور ۵. کتابونه اخستل یا دا چې ۲. ماشومان به همېشه یو کتاب لولی.<br>- یو یو طالب علم په خپله خوښه راځی او د ټولګی په مخ کښې کار کوی، نور ورته ګوری، شمېرې یې کوی او حلونه یې تجویز کوی مثلاً ۲. نورو کتابونو ته ضرورت دے یا ۲. طالب علمان به یو کتاب کښې برخه اخلی. | مشق پاڼه ر۱-۳٦-۱<br><br>پنځه کتابونه یا نور شیزونه |
| | **۲- د عددونو په مقابله کولو کښې مشق** | |
| - د شیزونو دوه ګروپونه وړاندې کول د هر یو شمېر د ۱ او ۱۰ ترمنځه دے).<br>- د اندازې لګولو غوښتنه کول چې کوم ګروپ زیات دے؛ بیا یې شمېر کول او متابله کول.<br>- د شیزونو په مختلفو ګروپونو سره تکرار. | - مشاهده کول، اندازه لګول، شمېر کول، د متابلو کول، مثلاً ۷ کانړی د ۹ کانړو نه کم دی. ۹ کانړی د ۷ کانړو نه زیات دی. (۲)<br>- د پاسنی قدم په شان عمل کول. | ۲۰ کانړی (۱) خالی د تېلو ډبلې یا نور شیزونه |
| | **۳- په عددی تعلقاتو خبرې کول** | |
| - د دویمې مشق پاڼې د لوستلو غوښتنه کول او د کار موندل.<br>- غوښتنه کول چې په بکسونو کښې درست عددونه اولیکئ.<br>- د متعلقه شیزونو د شمېر د متابلې کولو غوښتنه کول او هر څومره ممکنه متابلې چې کېدے شی، کول. | - مشاهده کول، ځان پرې پوهول او د کار وضاحت.<br>- په خاموشۍ سره شمېرل او خالی ځایونه ډکول.<br>- د یو یو ماشوم هم د غسې کول، د نورو ورته غوږ نیول، اصلاح یې کول، تکرارول مثلاً:<br>«د پرچونړنه ۲ پیالې زیاتې دی»<br>«څومره چې قمیسونه (کمیسونه) دی دومره پرتوګونه هم دی»، او داسې نور. | مشق پاڼه ر۱-۳٦-۲ |

د دې درسي پلان په باب ځنې نورې تبصرې:

(١) یاد لرئ چې په ټولګی (جماعت) کښې دې همېشه دغسې څیزونه موجود وی.

(٢) دا خبره ضروری ده چې ماشومان مکملې جملې ووائی استاد دې ورښئ عبارت په موندلو کښې مرسته او اصلاح کولی شی خو چې په صحیح جواب نهٔ ورکوی.






**د بل درسي پلان د ښودلو نه مخکښې د وړېي درسونو خاکې**

| اول ټولګی درس ریاضي ر ۱-۳۶ | عنوان: د عددونو د متابله کولو څلمه تورمشق | |
|---|---|---|
| | **دشاګردانو / استاد مشغلې** | **درسي معاونات** |
| | ۱، دَمشق پانړې ر۱-۳۶-۲ مطالعه کول ، دَشیزونو نزمونه اخستل اودَ سورت حال بیانول . <br> ۲، دشیزونو شمېر معلومول ، دمثال پهٔ طور داوئیل : ۴ سړی دی ، ۲ کرسی دی اوداسې نور . دَ شیزونو دَمقدار متابله کول . <br> ۳، بحث کول چې دَ مختلفو شیزونو دَ شمېر نه کومې مسئلې راولا ړېدے شی مثلاً ۴۰ سړی دی خو سرف ۲ کرسی دی ، اوداسې نور . پهٔ داسې سورت حال سړی څنګه قابو موندے شی . ( مثلاً "۲" سړی دَ "۱" پیالی نه څښلے شی" یا "۲" سړی پهٔ کرسو کښېناستے شی او ۲ سړی به پهٔ زمکه کښېنی" اوداسې نور) <br> ۴، مشق پانړه رنګول اوسورے پرې کول . | مشق پانړه ر۱-۳۶-۲ |



| عنوان: دَ ۱-۱۰ پورې عددونو دَ پاره پوړیه ( اندرپایه ) جوړول | |
|---|---|
| د شاګردانو / استاد مشغلې | |
| ۱، استاد به پهٔ توره تخته بریکس، دوه بکسه بیا درې بکسه او نور دَ یوبل دَ پاسه پهٔ داسې طریقه جوړوی چې پهٔ آخرکښې ترینه دَیوې پوړیه شکل جوړ شی :<br>ماشومانو ته رښیل چې متعلقه عددونه ( ۱،۲،۳،۴،۵ ) دَ پوړیو پهٔ سر ولیکئ .<br>۲، ماشومانو نه غوښتنه کول چې تر ۱۰ پورې پوړیه جوړې کړئ . پهٔ صحیح جوړولو کښې مرسته کول .<br>۳، مشق پاڼه را-۳٦-۴ مطالعه کول . د مشق پاڼې دَ ړومبۍ برخې مکملول د ۱-۱۰ پورې د مخ پورته قدمونو اودَ ۱۰-۱ پورې دَ مخ ښکته قدمونو جوړولو پهٔ ذریعه ( دَ یو یو پهٔ قدم ).<br>۴، دَ مشق پاڼې دَ دویمې برخې دَ کار وضاحت ؛ پوړیه دې دَ ۲-۱۰ او ۱۰-۲ پورې دَ دوه دوه پهٔ قدمونو کښې وی ، چک کول ، اصلاح کول . | توره تخته<br><br><br><br><br>مشق پاڼه را-۳٦-۴ |

| | | | |
|---|---|---|---|
| 4 − 36 | را | | |
| ۴-۳٦ | را | | |

| | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۲ | ۴ | ٦ | ۸ | ۱۰ | ۸ | ٦ | ۴ | ۲ | ۱ | ۲ | ۳ | ۴ | ۵ | ٦ | ۷ | ۸ | ۹ | ۱۰ | ۹ | ۸ | ۷ | ٦ | ۵ | ۴ | ۳ | ۲ | ۱ |

| رياضي اول ټولګی ل ا - ۳۷ | عنوان: د ۱۰ - ۰ پورې په سلسله کښې جمع او تفریق | |
|---|---|---|

| د استاد مشغلې | د شاګردانو مشغلې | درسي معاونات |
|---|---|---|
| | ۱- جمع کول، تفریق کول/ عبارتي کول د مساوات | |
| - درې عددونه مثلاً ۵، ۳، ۷ په توره تخته لیکل؛ غوښتنه کول چې دې درې عددونو نه دوه عدده مثلاً ۵، ۳ یا ۵، ۷ راوا خلئ او ټولې ممکنې جمعې او تفریقونه پرې وکړئ. حاصل به د ۱۰ نه نه زیاتیږي. (۱) | - مشاهده کول، تجویز کول، حلول د مساواتونو لکه: ۵ + ۳ = □؛ ۵ - ۳ = □؛ ۳ + ۷ = □ او نور داسې. چک کول چې حاصل د ۱۰ نه زیات وی لکه ۵ + ۷ = ۱۲؛ د دې مشق د پاره د دې ډول مساوات رد کول. | توره تخته |
| - د دې مساواتو د موندلو او په توره تخته د لیکلو په وخت کښې د شاګردانو سره مرسته کول. (۲) | - د بېل بېل طالب علم دا مساوات په توره تخته لیکل؛ د نورو ورته کتل، تبصرې کول، چک کول. | توره تخته |
| | ۲- د همدغه قسم مساواتو مشق په سلېټونو کول | |
| - غوښتنه کول چې د کار د کولو د پاره جوړې جوړې شئ. | - جوړه جوړه کېدل. | |
| - درې نوی عددونه په تخته لیکل چې شاګردانو تجویز کړی دی؛ (۳). غوښتنه کول چې پخپلو سلېټونو دومره مساواتونه ولیکئ او حل کړئ څومره چې کولے شئ. دا ګېرنه ورکول لکه: « د مساوات لری عدد به څوک پیدا کړی؟ » | - مشاهده کول، داسې وال سره کار کول. | توره تخته، سلېټونه |
| - غوښتنه کول چې د مساواتو عددونه سره وشمېرئ! شاباسے ورکول. | - شمېرل، متابله کول. | |
| - د نتا یجو په مقابله کولو کښې ئې لارښونه کول. | - دیوېر شاګرد د مساوات لیکل په توره تخته؛ د نورو د مساواتو متابله کول، بحث کول، اصلاح کول. | توره تخته |
| | ۳- د همدغه قسم مساواتو مشق په مشق پاڼو کښې | |
| - د ړومبی مشق پاڼې د مطالعه کولو غوښتنه مرسته کول. | - د مشق پاڼې کتل، بحث کول، په کار ځان پوهول. | مشق پاڼه ر ا-۳۷-۱ |
| - غوښتنه کول چې مساوات ولیکئ او حل ئې کړئ؛ په شاګردانو ګرځېدل او مرسته کول. | - په خاموشۍ سره کار کول. | |
| - غوښتنه کول چې کار موداندی والانو سره متابله کړئ؛ مرسته کول (۴) | - کاردانی یوالانو سره متابله کول، بحث کول، اصلاح کول. | |

| درسي پلان نمبر: ر۱-۳۷ | |
|---|---|

د دې درسي پلان په باب شخصي نوري تبصرې :

۱- د ۵-۷ يا ۳-۷ په شان مساوات به د دې مشق د پاره نه قبلوئ. د امساوات د اصلي يا حقيقي شيزونه سره د عملي مثالونو په بنياد چک کول کيږي. ماشومانو ته به پته ولګيږي چې که چرې پنځه شيزونه وي نو ۷ شيزونه ترې نه شي اخيستل کېدے.

۲- په دې مثال کښې ۷۰ مساوات دي چې قبليدے شي :

۳+۵ / ۵+۳ / ۳+۷ / ۷+۳ / ۷-۳ / ۷-۵ / ۵-۳

۳- په دې مشق کښې به استاد د ۲/۷/۳ او ۶/۲/۴ د ترکيب (يوځای کولو) نه پرته کوې ځکه چې دا ترکيبات روسنه په مشق پاڼو ر۱-۳۷-۱ کښې استعماليږي.

۴- استاد ته به دا پته ولګي چې کوم شاګرد خاص کمک ته ضرورت لري.

| ۴ ۲ ۶ | ۳ ۷ ۲ | ر۱ / ۱-۳۷ | ر۱ / 37-1 |
|---|---|---|---|
| | | | |
| | | | |
| | | | |
| | | | |
| | | | |
| | | | |
| | | | |
| | | | |
| | | | |

# د بل درسي پلان د ښودلو نه مخکښې د ورپسې درسونو خاکې

عنوان: دمخ په شا عمل مشق کول (جمع اوتفریق د ۰ - ۱۰ پورې په سلسله کښې)

| | د شاګردانو / استاد مشغولې | درسي معاونات |
|---|---|---|
| اول ـ دوهم درسي ساعتونه<br>ر ۱-۳۷ | ۱- په پوره مشق کښې دعملیو مشق کول:<br>د استاد د عدد پرکارډ خوښول مثلاً عدد ۶۰؛ ماشومانو ته دوغه عدد نه ښودل. د ماشومانو د عدد قیاس کول؛ د استاد د غه قیاس شوے عدد (مثلاً عدد ۲۰) په تخته لیکل. بیا د استاد خپل نمبر ښودل او په توره تخته ئې لیکل. نمبر په همدغه پرکرښه لیکل لکه: ۲ = ۶. بیا پوښتنه کول چې د ۲۰ نه ۶۰ ته دررسیدلو دپاره څه کول په کار دی؟ (کانړی، پنسلونه یا نور شئ استعالول). ماشومانو ته به پته ولګي چې ۶۰ ته دررسیدلو دپاره [۴] زیاتول په کار دی. ۲۰ + [۴] = ۶۰.<br>په همدغه طریقه سره دمخ په شا (اړولے) مساوات جوړول د استاد په ذریعه.<br>د خوښ کړے شوی عدد ۶۰ نه شروع کول او بیا د قیاس کړے شوی عدد ۲۰ نه؛ پوښتنه کول چې د عدد ۶۰ نه عدد ۲۰ ته دررسیدلو دپاره څه کول په کار دی؟ په دې ترتیب دې مساوات ته رسیدل: ۶ - [۴] = ۲<br>۲- همدغه مشق په نورو نورو عددونو سره تکرارول؛ په څیزونو سره ئې عملی مظاهره کول.<br>۳- په درئیسه مشق پاڼې کار کول:<br>الف: د مشق پاڼې مطالعه کول؛ ب: په کار بحث کول او شان پرې پوهول.<br>ج: په خاموشئ سره کار کول؛ د: نتیجې په ټولګی کښې مقابله کول، اصلاح کول | توره تخته<br><br>توره تخته<br><br>مشق پاڼه را-۳۷-۲ |

| 2_37 | 1ر |
|---|---|
| ۲-۳۷ | ر۱ |

| | | |
|---|---|---|
| [۵] [+] [۲] = ۷<br>[۷] [-] [۲] = ۵ | [۱] [+] [۳] = ۴<br>[۴] [-] [ ] = ۱ | [۳] [+] [ ] = ۹<br>[۹] [-] [ ] = ۳ |
| [۵] [ ] [ ] = ۱۰<br>[۱۰] [ ] [ ] = ۵ | [۰] [ ] [ ] = ۸<br>[۸] [ ] [ ] = ۰ | [۲] [ ] [ ] = ۶<br>[۶] [ ] [ ] = ۲ |
| [۷] [ ] [ ] = ۴<br>[۴] [ ] [ ] = ۷ | [۶] [ ] [ ] = ۱۰<br>[۱۰] [ ] [ ] = ۶ | [۴] [ ] [ ] = ۷<br>[۷] [ ] [ ] = ۴ |
| [۰] [ ] [ ] = ۶<br>[۶] [ ] [ ] = ۰ | [۳] [ ] [ ] = ۱۰<br>[۱۰] [ ] [ ] = ۳ | [۱] [ ] [ ] = ۹<br>[۹] [ ] [ ] = ۱ |

عنوان: د ۰ - ۱۰ پورې په سلسله کښې د جمع او تفریق لوړ لوړ مشق

| د شاګردانو / استاد مشغلې | |
|---|---|
| ۱- په پرشان عددونو سره په شپږو ختلفو مساواتونو کښې د جمع د عمل مشق کړل مثلاً: ۲ + ۲ = □ یا ۵ + ۴ = □<br>۲ + ۳ = □ ۴ + ۵ = □<br>۵ = □ + ۳ ۹ = □ + ۵<br>۵ = □ + ۲ ۹ = □ + ۴<br>□ = ۲ + ۳ □ = ۴ + ۵<br>□ = ۳ + ۲ □ = ۵ + ۴ | توره تخته |
| ۲ - په دریمه مشق پاڼه کار کول:<br>الف: په کاربانډې ځان پرشول ؛ ب: مساوات په خاموشۍ سره حلول.<br>ج: تروګی ته په لوستلو سره ئې مقابله کول ، اصلاح کول. | مشق پاڼه را-۲۷-۳ |
| ۳- په څلورمه مشق پاڼه کار کول:<br>الف: د مشق پاڼې مطالعه کول . ب: بحث کول او په کار ځان پوهول.<br>ج: په خاموشۍ سره کار کول. د: د یوانه ی وال سره کار کول:<br>اول مقابله کول ، بیا د دوه دوه په قدم مخ پورته او مخ بنکته په یادو ویل (وار په وار). | مشق پاڼه را-۲۷-۴ |

ر ۱-۲۷

| ۳—37 | ۱ر |
|---|---|
| ۳-۳۷ | ۱ر |

| | |
|---|---|
| ۱ + ۲ = □ | ۱۰ - ۲ = □ |
| ۲ + ۲ = □ | ۹ - ۲ = □ |
| ۳ + ۲ = □ | ۸ - ۲ = □ |
| ۴ + ۲ = □ | ۷ - ۲ = □ |
| ۵ + ۲ = □ | ۶ - ۲ = □ |
| ۶ + ۲ = □ | ۵ - ۲ = □ |
| ۷ + ۲ = □ | ۴ - ۲ = □ |
| ۸ + ۲ = □ | ۳ - ۲ = □ |

| ۴—37 | ۱ر |
|---|---|
| ۴-۳۷ | ۱ر |

| | |
|---|---|
| ۳ + ۵ = □ | ۲ + ۵ = □ |
| ۲ + ۴ = □ | ۳ + ۶ = □ |
| ۵ + ۳ = □ | ۲ + ۵ = □ |
| ۴ + ۲ = □ | ۳ + ۶ = □ |
| □ = + | □ = + |
| □ = + | □ = + |
| ۸ = □ + ۲ | ۹ = □ + ۶ |
| ۶ = □ + ۲ | ۷ = □ + ۵ |
| ۸ = □ + ۲ | ۹ = □ + ۳ |
| ۶ = □ + ۴ | ۷ = □ + ۱ |

| عنوان، د ۰-۱۰ پورې په سلسله کښې جمع کول او تفریق کول. دوه عددونه په دوه مختلفو طریقو جمع کول. | ریاضي<br>اول ټولګی<br>ر ۱ - ۳۸ |
| --- | --- |

| د استاد مشغلې | د شاګردانو مشغلې | درسی معاونات |
| --- | --- | --- |
| | ۱- په یوه ګروپ کې لوبه کښې د جمع او تفریق پرځای کول | |
| - ماشومان د لوبې د پاره تیارول.<br>- پنځۀ پنځۀ ماشومان په دوه ګروپونو کښې ختې ته را بلل.<br>- د استاد لاسونه پرقول او د یو عدد مثلاً د ۴۰ نوم اخستل، غوښتنه کول چې د دغه هومره شمېر ماشومان دې د ګروپ ۱۰ نه ګروپ ۲۰ ته لاړ شی.<br>- په سورتِ حال د بحث کولو غوښتنه او په توره تخته د مساوات لیکل. | - غوږ نیول او ځان پرې پوهول.<br>- د غوښتنې مطابق په خپله خوښه را تلل.<br>- کله چې د ۴۰ عدد نوم واخستې شی نو د څلورو ماشومانو په منډه د یو ګروپ نه بل ګروپ ته تلل.<br>- بحث کول مثلاً: "لومړي په هر ګروپ کښې پنځۀ پنځۀ ماشومان وو، بیا څلور دوېم ګروپ کښې شامل شول. اوس په یو ګروپ کښې یو پاتې دے او نهۀ ماشومان په بل ګروپ کښې دی." مساوات په توره تخته لیکل:<br>۵ - ۴ = ۱     ۵ + ۴ = ۹ | توره تخته |
| - لوبه جاری ساتل او د عدد ۴۰ نوم بیا اخستل او څلورو مختلفو ماشومانو ته وئیل چې د دوېم ګروپ نه واپس لومړي ګروپ ته منډه کړی.<br>- په توره تخته د مساوات لیکلو غوښتنه کول.<br>- هم دغه ګروپونو سره د مشق تکرارول، خرد ماشومانو شمېر بدلول. | - د بنودنې مطابق ګروپونه بدلول.<br>- د بحث کولو نه پس مساوات لیکل:<br>۱ + ۴ = ۵     ۹ - ۴ = ۵<br>- مشقونه څو څو ځله تکرارول، د مساوات بیانول او لیکل. | توره تخته |
| | ۲- نور مشق | |
| - د مشق پاڼې را-۳۸-۱ د کارپۀ پوهولو کښې د ماشومانو مرسته.<br>- په ورکړے شوی مثال کښې کار کول.<br>- د مشق د مکملولو غوښتنه کول، مرسته کول او چک کول ئې. | - مشق پاڼه لوستل او په کار بحث کول.<br>- د مثال په رڼا کښې کړښه معلومول.<br>- مشق پاڼه مکملول، اندی وال سره چک کول ئې (د لومړي قدم په شان د مساوات د جوړو لوستل ته که ضرورت وی نو د مرستې کولو غوښتنه کول.) | مشق پاڼه را-۳۸-۱ |
| | ۳- دوه عددونه په دوه مختلفو طریقو جمع کول (۱) | |
| - د ایکی یو قسم لس څیزونه لکه: کاڼی په دوه ګروپونو کښې ترتیب کړئ مثلاً په څلورو او شپږو کښې.<br>- دوه ګروپونه یو ځای کول او د مساوات غوښتنه کول.<br>- کاڼو یا څیزونو ته څو څو ځله دوباره ترتیب ورکول لکه: ۵+۵، ۲+۸، ۷+۳ او داسې نور. را۱ | - مشاهده کول، شمېرل او د کاڼو متعلق خبرې کول.<br>- مساوات په څلور کښې وئیل او په توره تخته ئې لیکل: ۴ + ۶ = ۱۰     ۶ + ۴ = ۱۰<br>- شمېرل او کوشش کول چې هر ځل د مساوات صحیح جوړې وموندے شی، په توره تخته ئې لیکل. | لس څیزونه مثلاً کاڼی<br>توره تخته<br>-<br>توره تخته |

ددې درسی پلان په باب ښځه نوري تبصرې ؛

(١)، ددې دپاره چې په دوو مختلفو طريقو سره د دوو عددونو د جمع کولو خيال (مفکوره) ښه وښودل شي نو استاد به دلاندې په شان عمل کړی :

- روپۍ ١٠ شيزونه په دوو ګروپونو ويشل مثلاً په ٤٠ او ٦٠ باندې.
- بيا د شيزونو د کڼې خوا ګروپ يعني ٤٠ د شيزونو د ښۍ خوا ګروپ ته ورنږدې کول؛ په دغه عددی قيمی خبرې انزې کول لکه : اول کښې ٦، وو، بيا ٤، ورسره نور يو ځای شول، اوس ١٠، دی. د ٦ + ٤ = ١٠ مساوات په تووره تخته ليکل.
- بيا شروع کول : ښۍ ګروپ يعني ٦٠ د کڼې خوا ګروپ خواته ورخوځول. د عددی قيمی په باب پوښتنه کول : په اول کښې ٤، وو، بيا ٦، ورسره نور يو ځای شول، اوس ١٠، شول. د ٤ + ٦ = ١٠ مساوات په تووره تخته ليکل.

| ر١ | 1-38 |
|---|---|
| ر١ | ١-٣٨ |

| | |
|---|---|
| ٣ + ١ | ١ - ١٠ |
| ١ + ٨ | ٦ + ٢ |
| ۴ + ١ | ٣ + ۴ |
| ٣ - ١٠ | ١ + ٣ |
| ٣ - ٧ | ۴ - ٩ |
| ۴ + ٢ | ٢ - ٥ |
| ٢ - ١٠ | ۴ - ١٠ |

د بل درسی پلان د ښوونځیو د لومړي ټولګي لپاره د ورځني درسونو خاکه

| عنوان: په جمع کښې د عددونو تبادله | |
|---|---|
| د شاګردانو / استاد مشغولی | درسی معاونات |
| ۱- په دویمه مشق پاڼه کښې د تصویرونو په لومړۍ جوړه نظر اچول او پوښتنه کول: «په لومړي تصویر کښې څه ګورئ؟»، بیا په دویم تصویر کښې څه ګورئ؟»<br>۲- غوښتنه کول چې ددې معلومات ورکړي چې په دواړو تصویرونو کښې کوم شیان سره برابر دي (په هر تصویر کښې د مرغیو شمېر پنځه دی)<br>۳- د دواړو تصویرونو د عددي قیمتو او مساوات په پیدا کولو کښې مرسته کول.<br>- لومړی تصویر:<br>په اول کښې درې مرغۍ ناستې وې. بیا څلور مرغۍ نورې ورسره یوځای کیږي. نو په آخر کښې به اووه مرغۍ ناستې وي. په توره تخته لیکل: ۳+۴ = ۷<br>- دویم تصویر:<br>په اول کښې څلور (۴) مرغۍ ناستې دي. بیا درې مرغۍ نورې ورسره یوځای شوې. په آخر کښې به (۷) مرغۍ شي. په توره تخته لیکل: ۴+۳ = ۷<br>(د ۳+۴ = ۷ په څوا کښې).<br>۴- د ماشومانو نه د آخرنۍ صورت حال د جوړولو غوښتنه کول (۷- ناستې مرغۍ) بیا د دغه دوه تصویرونو لاندې بکسونو کښې دوه مساوات لیکل.<br>۵- ماشومان دا بل کارځانله ځانله حلوي (د مرغیو جوړول، مساوات لیکل)، په دوه دوه کسه د کار کره اچک، کول. | مشق پاڼه را-۳۸-۲<br><br><br><br><br><br>توره تخته |

| را | 2-38 |
|---|---|
| را | ۲-۳۸ |

۳ + ۴ = ۷

۴ + ۳ = ۷

☐ + ☐ = ☐

☐ + ☐ = ☐

عنوان: د سودا اخستلو یوه لوبه کول

| | د شاګردانو / استاد مشغلې |
|---|---|
| ۵ پیسو، لسو پیسو سکه | ۱- اصلی سکه (پنځه یا لس پیسې) ښودل، د هغې په قیمت خبرې کول / تشریح کول. |
| | ۲- په دې خبرې کول چې سړے په دې څه اخیستلے شی؟ |
| مشق پاڼه را-۳۸-۳ | ۳- غوښتنه کول چې مشق پاڼې را-۳۸-۳ ته وګوری ا د جوړو شوو سکو پېژندنه کول. |
| | ۴- غوښتنه کول چې د کار د کتاب د ملحقه حصې نه دې کاغذی سکې وشلولے شی (مشق پاڼه را-۳۸-۳) د استاد ئې مرسته کول. |
| | ۵- شینې څیزونه لکه کاڼړې ترتیبول او غوښتنه کول چې د د غونه یو شو کاڼړی په کاغذی سکو واخلی که چری هر شین (کاڼړے) ۵۰ پیسې قیمت ولری. غوښتنه کول چې د څیزونو د اخیستلو د پاره په مختلفو طریقو پیسې اداکړی. مثلاً چې که د یو څیز قیمت ۵۰ پیسې وی نو د وه څیزونو د اخیستلو د پاره د ۱۰۰ پیسو سکه ورکړی او د ۵۰ پیسو دوه سکې ورکړی. |
| مشق پاڼه را-۳۸-۴ | ۶- غوښتنه کول چې مشق پاڼه را-۳۸-۴ د دومره شمیر ټافیانو په جوړولو سره استعمال کړی کوم چې په مثال کښې د ښودلے شوو سکو په ذریعه اخیستلے کیدے شی. هره ټافی ۵۰ پیسې قیمت لری. |
| | ۷- د مشق پاڼې د د غه بل کار حلول په داسې طریقه چې د ومره ټافیانې په هره برخه کښې جوړې کړے شی کومې چې په د غه جوړو (رسم) شوو پیسو اخیستے کیدے شی. |

| 3-38 ر ا<br>۳-۳۸ ر ا | | |
|---|---|---|
| 5 | 10 | 10 |
| 5 | 10 | 10 |
| 5 | 5 | 10 |

د ملحقه حصې نه شلولې کیږي

| 4-38 ر ا<br>۴-۳۸ ر ا | |
|---|---|
| 10, 10, 5, 5 | 10, 5, 10 |
| 5, 10, 10, 5, 10 | 10, 5, 5 |

ریاضی
اول ټولګی
ر ۱ - ۳۹

عنوان: د نوو عددونو ښودل "۱"

| درسی معاونات | د شاګردانو مشغلې | د استاد مشغلې |
|---|---|---|
| | **۱- د ۱۱-۲۰ پورې عددونو ښودل** | |
| | - په خپله خوښه مخې ته راتلل، مشاهده کول. | - د دوو ګروپونو نه چې په هر یوه کښې لس لس شاګردان وی غوښتنه کول چې مخې ته راشی. (۱) |
| | - هر ګروپ شمېرل او ځواب ورکول: (۱۰، ۱۰) | - غوښتنه کول چې هر ګروپ دې وشمېرل شی. |
| | - د یو ماشوم ورتلل د خپل ګروپ نه دغه بل ګروپ ته. | - دیوه ګروپ یوتن ماشوم ته وئیل چې دې بل ګروپ سره یوځای شی. |
| | - د دغه دوه عددی قیمې وئیل. | - غوښتنه کول چې څه پېښ شول بیان ئې کړئ. |
| توره تخته | - د عددی قیمې مطابق د مساوات پیداکول او دیوبل په خواکښې ئې په توره تخته لیکل (۲)<br>۱۱ = ۱ + ۱۰     ۹ = ۱ - ۱۰ | - غوښتنه کول چې دغه مساوات دې په تخته ولیکل شی. |
| | - دلوئ ګروپ سره دیوبل ماشوم یوځای کېدل. | - دوړکوټی ګروپ یوماشوم ته وئیل چې دغه لوئ ګروپ سره یوځای شی. |
| توره تخته | - عددی قیمې وئیل؛ په توره تخته د تخکینی مساوات لاندې د نوی مساوات لیکل<br>۱۲ = ۱ + ۱۱     ۸ = ۱ - ۹ | - بیا د دغه عددی قیمې او مساوات غوښتنه کول. |
| | - ان ترهغې جاری ساتل چې دې لاندې مساوات ته خبرې ورسیږی.<br>۲۰ = ۱ + ۱۹     ۰ = ۱ - ۱ | - د آخری مساوات پورې د مشق جاری ساتل. |
| توره تخته | - نوی عددونه مخ په وړاندې او مخ په شا په اوچت اواز لوستل. | - نوی عددونه ښه لوئ او واضحه په تخته لیکل. |
| | **۲- د ۱۱-۲۰ پورې عددونو پېژندنه کول** | |
| توره تخته | - ښودل شوی عددونه په اوچت اواز وئیل، اول په ګډه او بیا ځانله ځانله.<br>- دیو یو طالب علم هغه عدد ته په توره تخته کښې اشاره کول. | - په یوغیرمنظم ترتیب ښیی عددونو ته اشاره کول.<br>- دیو عدد وئیل (۱۱ - ۲۰) |
| | **۳- د ۲۰ پورې د عددونو لیکل** | |
| مشق پاڼه ر۱-۳۹-۱ | - په خالی بکسونوکښې د عددونو د لیکلو په ذریعه د مشق پاڼې مکملول او بیا د مساوات مکملول. | - د ۱۱-۲۰ پورې د بکسونو د ډکولو په ذریعه د پوښتنې مشق پاڼې مکملول او د مساوات حلول. |
| سلېټونه | - ځانله ځانله د ۰-۲۰ پورې عددونه لیکل، جوړه جوړه چک کول، اصلاح کول. | - څومره عددونه چې تراوسه پورې زده کړے شوی دی د هغوئ د لیکلو غوښتنه کول. |

د دې درسي پلان په باب نورې تبصرې :

۱- که چېرې په ټولګي کښې ۲۰ شاګردان نه برابرېږي نو د دې سبق د لومړي (پړمبي) قدم د پاره د بل ټولګي نه ماشومان راوستلے شئ.

۲- چونکه د ۱۱-۲۰ پورې عددونه د شاګردانو د پاره نوي دي له دې وجهې نه استاد د هغوئ نه دا توقع نه شي کولے چې د دې عددونو نومونه واخلي او په خاص طور يې وليکي. يقيناً په شاګردانو کښې به ځيني داسې کسان هم وي چې په دې عددونو کښې په ځينو ځينو عددونو پوهېږي. استاد به کوشش کوي چې د شاګردانو د دغه موجوده معلوماتو نه څومره چې ممکن وي ښه کار واخلي. خو په دې کښې به مرسته کوي چې عددونه په تخته په خاص طور وليکلے شي. استاد به دا خبره همېشه په خيال کښې ساتي چې د سبق په آخر کښې به ټول شاګردان په نوو عددونو پوهېږي.
هر کله که يو نوے عدد معرفي کړے شوے وي (مثلاً د يو مساوات په نتيجه کښې شاګرد يا استاد د دغه نوي عدد نوم اخيستے وي) نو استاد به خامخا شوخوشله د دغه عدد په وضاحت سره لولي او په همدغه وخت کښې به ورته اشاره هم کوي. شاګردان به په ګډه په اواز او ځانله ځانله دغه نوے عدد لولي (شوخوشله).

| 1 _ 39 | ۱ر |
|---|---|
| ۱-۲۹ | ۱ر |

| ۲۰ | ۱۹ | ۱۸ | ۱۷ | ۱۶ | ۱۵ | ۱۴ | ۱۳ | ۱۲ | ۱۱ | ۱۰ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | | | | | | | | | | ۱۰ |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱۰ | + | ۱ | = | ۱۱ | + | = | |
| ۱۱ | + | ۱ | = | | + | = | |
| | + | | = | | + | = | |
| | + | | = | | + | = | |
| | + | | = | | + | = | |

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

# تشریحي تبصره

داد ښوونکي لارښود او دې سره یوځای د طالب علمانو د کار کتاب پاک - جرمن لومړني تعلیمات تیار کړي دي دا به د هغه سکولونو د اول ټولګي استاذانو ته چې د تدریس زیات تجربه یې نه لري ، ډیر ضروري معلومات ورکړي او دا دواړه به د ریاضي په ابتدائي تدریس کښې مرسته وکړي .

۱- دا جلد (ټوک) چې دوه دیرش (۳۲) درسي یونټونه لري ، د اول ټولګي د دویمې نیمائي برخې دپاره دي . هر یونټ په یو تفصیلي درسي پلان او د ورپسې درسونو په دوو خاکو مشتمل دي . دې خاکو کښې د طالب علمانو مشق پاڼې ، لوبې ، د درسي معاوناتو د استعمال دپاره اشارې او د درسي طریقو په حقله څه عمومي تبصرې شاملې دي . د ښوونکي لارښود کښې هر درسي یونټ څلور مخونه (صفحې) لري . لومړي دوه مخونه د یو سبق د تفصیلي پلان دپاره مخصوص دي چې د طالب علمانو او استاذ ټولې مشغلې ، مشق پاڼې ، د سبق په دوران کښې د څه نورو معاوناتو استعمال او څه زیاتې تبصرې بیانوي .

ورپسې دوه مخونو کښې د بل درسي پلان د تدریس نه مخکښې د ورپسې درسونو ، خاکې ، د هغوی متعلقه مشق پاڼې او د ورپسې درسونو سره تړلي څه نور درسي معاونات شامل دي .

داستاذ نه دا توقع لرلې شي چې دوی به په هره هفته کښې دوه درسي پلانونه سره د ورپسې درسونو ختموي . دا به د معلم / معلمې په رهنمو (ورځنۍ) درس کښې څه قدرې لارښودنه وکړي ، خودې سره سره استاذ ته ددې اجازه هم ورکوي چې د خپل ټولګي د ضروریاتو مطابق زیات مشقونه تیار کړي .

۲- داستاذ نه دا توقع کیږي چې د لومړي نیم کال د دوه دیرش (۳۲) درسي پلانونو د مکملولو نه پس به هغه ددې جلد لومړي یونټ چې د دې دیرشم درسي پلان دي ، د نومبر د نیمائي پورې ختم کړي . هر کله چې دوه یونټه هره هفته وښودلې شي نو کتاب به د مارچ په دویمه نیمائي کښې د تعلیمي کال تر آخره پورې ختم شي .

تر دغه وخته پورې به ماشومان د ۱۰۰ پورې عددونو ، د دوی د ترتیب او رابطو سره اشنا شوي وي او په دې کښې به یې تجربه حاصله کړې وي چې د خیزونو ، سیکو او نوټونو د استعمال په ذریعه د دوو رومبو لسیزو په منځ کښې جمع او تفریق وکړي . دوی به ددې جوګه وي چې تر ۵۰ پورې بغیر د انتقال نه او ۱۰۰ پورې په مکملو لسیزو کښې جمع او تفریق وکړي . دې سره به هغوی په لسیز سیستم کښې څه پوهه حاصله کړې وي او د "نیمې" او "څلورمې" د تصوراتو سره به هم اشنا شوي وي .

۳- د ښوونکي د لارښود او طالب علمانو د کار کتاب د استعمالولو په حقله څه اشارې :

الف : په کار ده چې استاد مکمل درسي یونټ چې په کښې "ورپسې درسونه" هم شامل دي ، د مخکښې نه ولولي . چې د ورکړې شوو اشارو استعمال په ښه طریقه وکړې شي . مثلاً : ټولګي ته څه خیزونه راوړل ، ځان پرې لوبې سره واقف کول ، یا د څه ترتیب تیارې کول او داسې نور .
دا درس به دومره د هر وخت نه اخلي ، خو دا به د درس د کامیابۍ په یقیني کولو کښې مدد کوي .

ب : څرنګه چې اکثر ماشومان د کتابونو سره چلند نشي کولې نو استاد له په کار ده چې د کار د کتابونو د صفا ساتلو په حقله د ماشومانو رهنمائي وکړي . په سبق کښې د استعمالولو نه مخکښې دې ماشومان په دې کښې نه څه کرښې راکاږي او نه دې پرې څه جوړوي .
استاد دې په پوره توجه سره د تصویرونو جوړولو ، رنګولو او لیکلو په حقله هم رهنمائي وکړي . کله چې ماشومان په خپلو کتابونو کښې په مینه او توجه کار وکړي نو دوی به په روستو کښې په دې فخر کوي . په دې حقله دا مشوره ورکړې شي چې د ماشومانو د کار کتابونه دې د خرابیدلو نه د بچ کولو په خاطر په سکرل کښې کېښودلې شي . هر د کار کتاب باندې به د استعمالوونکي ماشوم نوم یا بله څه خاصه نښه وي چې د کتاب د مالک پته ترې لګي .

**د بل درسي پلان د بنوډلو نه مخکښې د وړيپې درسونو خاکې**

| عنوان: د ۰-۲۰ پورې عددونو پېژندل کول | | |
|---|---|---|
| دشاگردانو / استاد مشغلې | درسي معاونات | |
| ۱- د اعدادو دکارډونو بنودل په بې ترتيبه ډول د استاد له طرفه (۰-۲۰) پورې عددونه ؛ دبنودلے شوی عدد پېژندنه او وئيل د شاگردانو له طرفه .<br>۲- د ډېرو شاگردانو نه پوښتنه کول چې د ۰-۲۰ پورې مخ په وړاندې او مخ په شا شمېر وکړی .<br>۳- د تورو پنسلونو دکارډونو نه کار اخيستل (۱-۱۰) ، يوکارډ دلسو سرو پنسلونو ورسره هم استعمالول .<br>د سرو پنسلونو (۱۰) ، کارډ او د تورو پنسلونو کوم يوکارډ بې له انتخابه بنودل ؛ غوښتنه کول چې صحيح نمبر ووائي او په توره تخته ئې وليکي .<br>۴- دوئيمه مشق پاڼه استعمالول ، دکرښو په ذريعه عددونه سره تړل د ۲۰ نه شروع کول . په آخر کښې د تصويرونو تورول . | داعدادو کارډونه ۰ - ۲۰ پورې<br><br>د عددونو کارډونه (د پنسلونو تصويرونو سره ) ، توره تخته<br><br>مشق پاڼه را-۲۹-۲ | اول ټولګی درس ورځې ۱-۲۱ |



عنوان : پهٔ لسیزو ای واحدونو ( یونتونو ) مشق کول . د غیبو عددونو ځایونه ډکول

| | د شاګردانو / استاد مشغلې |
|---|---|
| توره تخته<br>مشق پاڼه را-۳۹-۳<br>توره تخته | ۱- داستاد د دریمې مشق پاڼې ړومبې مثال پهٔ توره تخته ویستل: ۱۳۰، ؛ دکار پوښتنه کول ، د شاګردانو پنه لکول چې څهٔ کول پهٔ کار دی ؛ بیا د غیبو تکو (۳) ، جوړول پهٔ توره تخته د نورو پهٔ خوا کښې . تکوته پهٔ اشاره کولو سره د نورو شاګردانو لهٔ خوا چک کول او د ۱۲۰ - ۱۳۰ پورې پهٔ اوچت اواز شمېرل . |
| مشق پاڼه را-۳۹-۳ | ۲- شاګردان د دریمه مشق پاڼې حصه غښې پخپله ډکوی ؛ چې څومره تکی شاګردانو پهٔ بکسونو کښې جوړ کړی دی د هغوی پهٔ باب د استاد پوښتنه کول ، بحث کول ، اصلاح کول . |
| مشق پاڼه را-۳۹-۴<br>توره تخته | ۳- عدد پاڼې ۸ / ۹ / ۱۰ / / / / / د مشق پاڼې را-۳۹-۴ ( د سرکښې خوا ) نه توری تختې ته رانقلول د استاد لهٔ طرفه؛ بحث کول . بیا د غیبو عددونو لیکل پهٔ توره تخته د شاګردانو لهٔ خوا |
| توره تخته | ۴- د څنګښې پهٔ شان عمل کول . عدد پاڼې / ۱۷ / ۱۶ / ۱۵ / / د څلورمې مشق پاڼې ( د سرښې خوا ) نه تختې ته نقلول د استاد لهٔ خوا ، بحث کول ؛ غیب عددونه ډکول . |
| مشق پاڼه را-۳۹-۴ | ۵- د طالب علمانو نه غوښتل چې غیب عددونه د څلورمې مشق پاڼې د پاسنۍ برخې پهٔ څلورو واړو عدد پاڼو کښې ولیکې . |
| توره تخته | ۶- د مشق پاڼې د لاندینۍ برخې پهٔ ړومبو دوه عدد پاڼو باندې په توره تخته کار کول ( ۱۵ / x / ۱۷ / x / / او ۱۸ / x / ۱۶ / x / / / ) . |
| مشق پاڼه را-۳۹-۴ | ۷- د طالب علمانو نه غوښتل چې ټول غیب عددونه د څلورمې مشق پاڼې د لاندینۍ برخې پنځهٔ واړو عدد پاڼو ته ورسوی .<br>۸- ټولې عدد پاڼې پهٔ اوچت اواز لوستل ، مقابله کول ، اصلاح کول . |

| 3-39 | ۱/ |
|---|---|
| ۳-۳۹ | ۱/ |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۵ | ۱۷ | ۱۳ |
| ۲۰ | ۱۶ | ۱۸ |

| 4-39 | ۱/ |
|---|---|
| ۴-۳۹ | ۱/ |

| | | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | | | ۱۵ | ۱۶ | ۱۷ | | | | | ۱۰ | ۹ | ۸ |
| | | | | ۱۲ | ۱۳ | | | | | | ۱۴ | ۱۵ |
| ۱۵ | | ۱۷ | | | | | | | ۱۸ | | ۱۶ | |
| ۸ | ۹ | | | | | | ۲۰ | | | | ۱۵ | |
| ۸ | | ۱۰ | | | | | | | | | | |

۳۱

ریاضي
اول ټولګی
ر ۱ - ۲۰

**عنوان: د ۱۰ - ۲۰ پورې عددي سلسلې سره اشنا کېدل، غیب عددونه لیکل**

| داستاد مشغله | د شاګردانو مشغله | درسي معاونات |
|---|---|---|
| | **۱- د ۱۰ - ۲۰ پورې د شمېر مشق** | |
| - د ۱۰ - ۲۰ پورې د عدد کارډونه استعمالول؛ په پرولسو ماشومانو یې تقسیمول.<br>- کارډ لرونکو ماشومانو نه غوښتنه کول چې مخې ته یو قطار جوړ کړي، د کارډ د عدد په خیال کښې ساتلو نه په غیر.<br>- ټولګي ته بلنه ورکول چې کارډ لرونکو پرولسو ماشومانو ته په صحیح سلسله کښې ترتیب ورکړي. | - د عدد کارډونه اخستل د نورو ورته په غور کتل.<br>- هم داسې یو قطار جوړول، بیا د عدد کارډونه ښکاره کول.<br>- بحث کول، تجویز وړاندې کول، یو ماشوم بل پسې صحیح ځای ته تلل، د عدد «۱۰» نه یې شروع کول؛ اخر دا چې کارډ لرونکي ماشومان وار په وار خپل عددونه وائي؛ د نورو چک کول، چې سلسله صحیح ده او کنه. | د عدد کارډونه ۱۰ - ۲۰ پورې |
| | **۲- د ۱۰-۲۰ پورې عددونو ته بیا ترتیب ورکول** | |
| - د ۱۰ - ۲۰ پورې کارډونه نورو ماشومانو ته ورکول.<br>- د ۱۰ - ۲۰ پورې کارډونه په ټولګي کښې ناستو ماشومانو باندې تقسیمول، غوښتنه کوا. چې په اشاره به صحیح سلسله کښې ځانونه ترتیبوي. فعالیت تکرار کول. | - د ځکښنې په شان عمل کول.<br>- د استاد اشارې سره سم را تلل او چې شرموږ زر کېدے شي صحیح قطار جوړول؛ د نورو چک کول او په ښودلې شوې سلسله کښې د عددونو لوستل، که ضرورت وي نو صحیح کول یې. | د عدد کارډونه ۱۰ - ۲۰ پورې |
| | **۳- د ۱۰-۲۰ پورې په سلسله کښې غیب عددونه لیکل** | |
| - دیوولسو ماشومانو یو ګروپ نه کار اخستل، د ۱۰ - ۲۰ پورې کارډونه پرې تقسیمول او غوښتنه ترې کول چې په ترتیب ودرېږي.<br>- ټولو ناستو ماشومانو نه غوښتنه کول چې خپلې سترګې پټې کړي، یو کارډ لرونکے ماشوم بهر خوا ته بوتلل.<br>- غوښتنه کول چې د عدد کارډونه په غور اوګوري او غیب عدد نوم واخلي.<br>- د دوو کارډونو د لرې کولو په ذریعه د مشق تکرار کول (۱) | - په صحیح ترتیب ودرېدل، د نورو په غور کتل، چک کول.<br>- سترګې پټول.<br>- سترګې غړول، کارډونه چک کول او د غیب عدد نوم اخستل، د دې عدد لرونکے ماشوم په قطار کښې واپس خپل ځای ته تلل.<br>- د ځکښنې په شان عمل کول، دوه غیب عددونه معلومول؛ بحث کول؛ چک کول، کوم ماشومانو سره چې دا عددونه وي د هغوی واپس خپل قطار ته تلل. | د عدد کارډونه ۱۰ - ۲۰ پورې |
| - دوهم مشق پاڼه استعمالول، د سر عدد پاڼه، په تخته جوړول؛ غوښتنه کول چې په دوهمو دوه خالي ځایونو کښې څه لیکل پکار دي.<br>- غوښتنه کول چې د مشق پاڼې په سر کښې په عدد پاڼه کښې ټول غیب عددونه ولیکي.<br>- غوښتنه کول چې خالي ځایونه په خپله د پاتې عددونو په ذریعه ډک کړي. که ضرورت وي نو دیوې کس مرسته کول. | - عدد پاڼه مطالعه کول. په خالي ځایونو کښې د دوو عددونو د لیکلو تجویز پېش کول. په تخته خالي ځایونو کښې دوه عددونه لیکل.<br>- د ۱۰ - ۲۰ پورې عدد پاڼه ډکول، جوړه جوړه چک کول.<br>- په خاموشۍ سره کار کول. په اخره کښې، د ټولو عددي سلسلو په اوچت آواز لوستل. مقابله کول. اصلاح کول. | تورې تخته<br>مشق پاڼه ر ۱-۲۰-۱<br>مشق پاڼه ر ۱-۲۰-۱ |

د دې درسي پلان په باب ضروري [illegible]

(۱) استاد کولی شي چې د شاګردانو د جوابونو په رڼا کښې مشق ګران کړي. د څهٔ وخت د پاره به صفحه صرف پر یو عدد کار ولري کوي، ممکنښي لهٔ دې نه چې دوه یا درې پهٔ یو ځای لرې کړي.

| 1-40-1 | 1/ |
|---|---|
| ۱-۴۰-۱ | ر۱ |

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۲۰ | ۱۹ | | | ۱۶ | | ۱۴ | ۱۳ | | | ۱۰ |

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۱۵ | ۱۳ | ۱۱ | ۱۰ |
| | | | |
| | | ۱۳ | |
| ۱۸ | ۱۶ | | |
| | ۱۷ | ۱۵ | ۱۴ |
| ۲۰ | | | |

د بل درسي پلان د ښوونځي د لومړي ټولګي د ریاضي درسونو خاکه

| | |
|---|---|
| عنوان: د ۱۰-۲۰ پورې په سلسله کښې د لومړني او اخرينی عددونو معلومول | |
| د شاګردانو / استاد مشغلې | درسي معاونات |
| ۱- په پورلسو شاګردانو د ۱۰-۲۰ پورې کارډونه تقسیمول، د عدد (نمبر) د پیژندلو تمرینونه کول. د یو داسې شاګرد مخې ته راتلل چې عدد یې تر اوسه پېښ ساتلې دے. میز یا تخته مثلاً په یوه کاغذ هومره واره په زوره ټکول چې څومره یې عدد دے، د نورو شمېرل، د عدد نوم اخستل. د شاګرد د ثبوت دپاره کارډ ښودل. د نورو شاګردانو او د معلم د عددونو په ذریعه مشق تکرارول. | د عدد کارډونه ۱۰-۲۰ پورې |
| ۲- په نورو شاګردانو کارډونه تقسیمول. یو شاګرد مخې ته را بلل او کارډ یې په لاس کښې نیول مثلاً ۱۴، د دوو شاګردانو په اشاره مخې ته راتلل چې مخکښې او روستو د وه عددونه مثلاً ۱۳، ۱۵ ورسره وی، او لنې شاګرد سره یې کښېناستل، د نورو چک کول. د غه لوبه څو ځلې تکرارول، هرځل په مختلفو عددونو سره شروع کول. | |
| ۳- مشق پانړه ر۱-۴۰-۲ د خالي بکسونو د ډکولو په ذریعه مکملول. په اخرکښې د نتیجو لوستل، د اصطلاحاتو مخکښې او روستو د استعمالولو په ذریعه. | مشق پانړه ر۱-۴۰-۲ |

| ر1 | 2-40 |
|---|---|
| ر۱ | ۲-۴۰ |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۱ ۱۲ ۱۳ | ۱۶ | ۴ |
| ۱۴ | ۱۳ | ۱۰ |
| ۱۸ | ۱۷ | ۱۱ |
| | ۱۹ | ۱۵ |

| عنوان: واخدونه (یرنتې) او لسیزې معلومول | | |
|---|---|---|
| | د شاگردانو / استاد مشغاې | |
| توره تخته (مشق پاڼه را-۴۰-۳) | ۱- د استاد په توره تخته په یوه کرښه کښې د یارلس ونې جوړول، څنګه چې د مشق پاڼې را-۴۰-۳ په اوله کرښه کښې ښودل شوي دي. نا مکمل مساوات د ونو سره لیکل: $\square = \square + ۱۰$<br>د مساوات د مکملولو د پاره د بحث لار ښودنه کول. شاگردان تجویزونه وړاندې کوي. د لسو ونو نه روسته یوه جداکوونکې کرښه را ښکل. بکسونه ډکول. هم هغه شان شکل (تصویر)، جوړول او مساوات کول څنګه چې د مشق پاڼې را-۴۰-۳ په اوله کرښه کښې دي. | [illegible] |
| مشق پاڼه را-۴۰-۳ | ۲- د لسو ونو نه روسته د جداکوونکو کرښو را ښکلو په ذریعه د مشق پاڼې مکملول (د ونو په شمارلو کښې یوه کرښه) او مساوات مکملول؛ اصلاح کول. | [illegible] |
| مشق پاڼه را-۴۰-۴ | ۳- په مثال د کار کولو د پاره مشق پاڼه را-۴۰-۴ استعمالول، په صحیح مساوات کښې د خالي ځایونو د ډکولو په ذریعه د مشق مکملولو غوښتنه کول. | [illegible] |

3-40 | ۱ر
۳-۴۰ | ۱ر

۳ + ۱۰ = ۱۳
□ + ۱۰ = □
□ + ۱۰ = □
□ + ۱۰ = □
□ + ۱۰ = □
□ + ۱۰ = □
□ + ۱۰ = □

4-40 | ۱ر
۴-۴۰ | ۱ر

۱۵ = ۵ + ۱۰
□ = □ + □

| ریاضي<br>اول ټولګی<br>ر ۱ - ۴۱ | عنوان: د ۰ - ۲۰ پورې په سلسله کښې مخ په وړاندې او شا حرکت کول (د ۱۰ او ۲۰ په قدمونو کښې) |
|---|---|

| د استاد مشغلې | د شاګردانو مشغلې | درسي معاونات |
|---|---|---|
| | ۱- د ۱۰ یا ۲۰ په قدم حرکت کول | |
| - لوبه تیارول (۱)<br>دلوبې تشریح کول: د یو طالب علم د سفر (۰) نه شروع کول او دیو قدم نه بل قدم ته ټوپ وهل، دیو بل طالب علم په هر قدم کښې خپل خپل عدد لیکل. | - غوږ نیول، په خوښه برخه اخیستل، د یو طالب علم ټوپ وهل، د بل طالب علم د عددونو لیکل، د نورو مشاهده کول، دغه عددونه په زوره تکرارول. | چاک یا چوکه (لښته) |
| - نورو طالب علمانو ته وئیل چې یرا ځي په یوه پښه د بکس (۰) نه بکس (۲۰)، ته او د بکس (۲۰) نه بکس سفر (۰) ته په ټوپونو لاړشي. | - په خوښه د دغه لوبې کول، د غسې کول څنګه چې ترې غوښتنه شوې ده؛ د نورو مشاهده کول، هر ټوپ چې وهل کیږي په اوچت اواز یې شمېرل په ګډه سره (مخ په وړاندې او مخ په شا). | |
| - د لوبې بیا کول، د دوه دوه په قدمو کښې د ټوپ وهلو غوښتنه کول مثلاً د ۰۰ نه ۲۰ ته او د ۲۰ نه ۴۰ ته او داسې نور؛ که چرې یو ماشوم غلطي وکړي (۲)، نو یو بل ماشوم به د همدغه نقطې نه لوبه جاري ساتي. | - په خوښه سره برخه اخیستل، د نورو شمېر کول، د یو شاګرد د غلطۍ په وخت کښې د هغه په ځای برخه اخیستل. د ټولو ماشومانو شمېر کول د هر قدم سره په اوچت اواز (مثلاً ۲، ۴، ۶ .................) | |
| - د لوبې د تکرارولو غوښتنه کول. خو ټوپ د ۲۰۰ نه ۱۸۰ ته او د ۱۸۰ نه ۱۶۰ ته وهل او داسې نور. | - په همدغه ډول په ټوپونو تلل. | |
| | ۲- د ۱۰ او ۲۰ قدمونو د جوړولو عملي مظاهرې | |
| | د پاره تورې تختې استعمالول | |
| - د یو مستطیل شکله اوږد چوکاټ ویستل په توره تخته چې یوولس بکسونه ولري. سرف په اول بکس کښې (۰) لیکل. | - مشاهده کول. | توره تخته |
| - دیو یا دوه په قدم د دغه عددي چوکاټ په بکسونو کله مخ ته کله شا ته ګوته بیول را بیول، د شاګردانو نه غوښتنه چې د بکسونو د عددونو قیاس وکړي. | - کوم بکسونو ته چې استاد اشاره کوي د هغوی عددونه وئیل لکه: ۱، ۲، ۳ ...... میا ۲، ۴، ۶ ..... یا ۱، ۲، ۵ ...... او داسې نور. | |
| - داسې کرښې ویستل چې بکسونه ۰، ۲، ۴، ۶، ۸، ۱۰ سره تړي، د دغه عددونو د لیکلو غوښتنه کول په بکسونو کښې. | - مشاهده کول؛ په صحیح بکسونو کښې د عددونو د لیکلو د پاره بختۀ تخته طالب علمان مخې ته راتلل. | توره تخته |
| | ۲- د قدمونو ۱۰ او ۲۰ د پاره مشق پاڼو استعمالول | |
| - د رومبۍ مشق پاڼې ته د کتلو غوښتنه کول؛ پاسنۍ برخه مکملول؛ په شاګردانو ګرځېدل، مرسته کول، چک کول (۳). | - په کار ځان بوخول؛ صرف په هغو بکسونو کښې عددونه لیکل چې د کرښو په ذریعه نښل شوي دي. | مشق پاڼه ر ا-۴۱-۱ |
| - د طالب علمانو نه غوښتنه چې د مشق پاڼې په آخر کښې په عدد پاڼه کښې عددونه ولیکي (۴). | - صرف په هغو بکسونو کښې د عددونو لیکل چې د کرښو په ذریعه نښل شوي دي. | مشق پاڼه ر ا-۴۱-۱ |

د دې درسي پلان په باب ځينې نورې تبصرې:

۱، د ټولګي په داخل کښې يا بيرون په برنډه کښې يا د سکول په ميدان کښې به د چاک په ذريعه په ځمکه د اندرپائي په شان پوره جوړول کيږي. اول به بکسونه جوړول کيږي او دومره لوئ به وي چې قدم پکښې ايښودل کيدے او په وضاحت سره عدد پکښې ليکل کيدے شي. استاد به په ټولمبي بکس کښې عدد ۰۰ ليکي.

۲، د دې لوبې د پاره به ځينې ضابطې اعلا نيږي لکه: په دوارو پښو ټوپ وهل يا دا چې د کرښې سره به نه لګيږئ يا به قدم د بکس نه بهرون نه ږدئ کله چې په يوه پښه ټوپ وهي (په بنه پښه يا په ګسه پښه).

۳، که چرې ځينې شاګردان په دغه نرۍ نرۍ بکسونو کښې د عددونو د ليکلو سره مشکلات لري نو استاد په دې وخت کښې دغه شاګردانو ته اجازه ورکولے شي چې کاغذ ګرځوي (وګرځوي) چې د هر عدد د ليکلو د پاره ډېر ځاى پيدا شي. مثلاً:




۴، که چرې شاګردان د دې کار په کولو کښې د مشکل سره مخامخ وي نو بيا دې ورته د کار وضاحت د ځمکښې په شان په توره تخته وشي يا دې هر يوه ته بېل بېل کار توضيح کړے شي.



د بل درسي پلان د ښودلو نه مخکښې د وړیې درسونو خاکې

اول ټولګي ریاضي ۴۱-۱-ل

| درسي معاونات | عنوان: د ۲۰ - پهٔ قدم پهٔ یادو شمېرل<br>د شاګردانو / استاد مشغلې |
|---|---|
| مشق پاڼه را-۴۱-۲ | ۱- د استاد ۲۱ شاګردان یا هغومره شاګردان څومره چې موجود وی مخې ته رابلل، یو قطار جوړول. مخې ته ولاړو ټولو شاګردانو ته د ۰-۲۰ پورې شمېرې ور حواله کول (هر یوهٔ ته یوه شمېره). د دوئ نه غوښتنه کول چې هر یو کس خپله خپله شمېره مهٔ هېروئ. د هر یو شاګرد خپله شمېره وئیل. اول د صفر نه شروع کول او بیا د ۲۰ نه.<br>۲- د قطار هر دویم شاګرد ته وئیل چې یو قدم پهٔ شا لاړشه مثلاً هغه شاګردان چې پهٔ قطار کښې پهٔ (۱، ۳، ۵ ........ ۱۹) پوزیشنونو (ځایونو) کښې ولاړ وی. د اول قطار هر یو ماشوم خپله شمېره وئیل مثلاً (۰، ۲، ۴ ........ ۲۰) او بیا د ۲۰ نه شا ته. بیا د دویم قطار ماشومانو هر یو خپله شمېره وئیل (۱، ۳، ۵ ..... ۱۹) او د ۱۹ نه شا ته.<br>۳- د یو عدد (شمېرې) وئیل د معلم له خوا مثلاً عدد ۱۷ د طالب علمانو نه پوښتنه کول (د دې شمېرې شاګرد پهٔ کوم قطار کښې ولاړ دے؟ (مثلاً دا هلک پهٔ شا تنی قطار کښې ولاړ دے).<br>۴- دویمې مشق پاڼې ته پهٔ غور کتل. د هر شاګرد پکښې عددونه لیکل. د شاګردانو پته لګول چې پهٔ مشق پاڼه کښې هم هغه شان ترتیب دے پهٔ کوم موچې پهٔ دویم قدم کښې مشق وکړو.<br>۵- د دغه دوه سلسلو (۱، ۳، ۵ ..... ۱۹ او ۰، ۲، ۴ ..... ۲۰) پهٔ یادو زده کولو د پاره د استاد شاګردانو ته وخت ورکول. د هر یو شاګرد پهٔ ذریعه دغه دوه سلسلې وئیل، کهٔ ممکنه وه نو مخ پهٔ وړاندې او مخ پهٔ شا. |



عنوان: د ۳۰ - په قدم او په یې ترتیبه قدمونو شمېر کول

| | د شاګردانو / استاد مشغلې |
|---|---|
| مشق پاڼه را-۴۱-۳ | ۱- درېیمې مشق پاڼې ته د کتلو خوا ست کول او د مشق پاڼې په کار خبرې کول. د سرېو عدد شمېر په خاموشۍ سره د شاګردانو له خوا، خو سرف په منځ بکسونو کښې د عددونو لیکل چې د کرښو په ذریعه سره تړل شوي وي. |
| | ۲- د پاسنۍ عدد پاڼې د عددونو تک (کره) کول. بیا د لاندینۍ عدد پاڼې د کول د شاګردانو له خوا. بیا چک کول. |
| مشق پاڼه را-۴۱-۴ | ۳- دیو خاص مشق اعلان کول. د څلورمې مشق پاڼې کار پیدا کول (معلومول) د شاګردانو له خوا او مشتونه پخپله کول. د استاد مرسته کول دی که ورته ضرورت وو. |



| | |
|---|---|
| 3_41 | ۱ر |
| ۳-۴۱ | ۱ر |

۲۰ ۱۸ ۲ ۰

۲۰ ۱۹ ۴ ۱

| | |
|---|---|
| 4_41 | ۱ر |
| ۴-۴۱ | ۱ر |

۱۹ ۵ ۲ ۰

۲۰ ۱

ج : استاد به ټولې مشق پاڼې د بنوونکي لارښود کښې موحی ، خوپهٔ دې کښې دېوخوسائز کم کړے شوے دے . داستاد دپاره مناسب ده چې د سبق د ښودلو نه مخکښې اصلی مشق پاڼو وګوری ، چې دټولوتفصیلاتو نه واقف شی .

د : داصلی صورت حال د مخکښې تللو به رنړا کښې استاد آزاد دے چې نور زیاتې مشقونه ولټوی .

هـ : لوبې اونورې مشغلې دې چرې هم نشی پرېښودلے ، خود استاد پهٔ مرضی دې تکرار ولے شی .

۴- د تدریسی معاوناتو د بنیادی اصولو پهٔ حقله څهٔ تبصرې :

الف : دا د تدریس یو داسې طریقه ده چې پهٔ دې کښې طالب علمان صرف پهٔ یادو زده کړو نهٔ کوی بلکې پهٔ تخلیقی ډول پخپله حلونه پیدا کوی . د مثال پهٔ ډول پهٔ دې کښې پهٔ دې زور راچولے شی چې د درسی معاوناتو استعمال وکړے شی ، د مشق پاڼو د ډکولو پهٔ وخت کښې مختلف تخنیکونه ( طریقې ) پهٔ کار راوستلے شی مساوات پهٔ عددی قصو بدل کړے شی ( او ددې برعکس ) او څهٔ چې زده کړے شوی دی د هغوئ نه بیا بیا کار واخیستے شی .

ب : دا درسی معاونات همیشه ماشوم پهٔ خیال کښې ساتی . ددې مطلب دا دے چې د ماشومانو مشغلې دې د تدریس مغز ( مرکز ) وګرځی . د زده کړې پهٔ عمل کښې دې ماشومان فعال اود ټولو د ورځنیو تجربو پرهې اوتا بلیت پهٔ دائره کښې راوستلے شی . داستاد د رهنمائی پهٔ رڼرا کښې " د کار کتاب " د استعمالولو پهٔ واسطه ماشومان پهٔ خپله د کار کولو او سوچ کولو پهٔ ذریعه زده کړه کولے شی او پهٔ باقاعدګۍ سره د پر زیات مشق کولے شی . دا اندی وال سره د کار کولو پهٔ ذریعه ، څنګه چې پهٔ اکثرو مشقونو کښې تجویز کړے شوی دی ، ماشومان ددې جوګه کیږی چې خپل خیالات یوبل ته ورسوی او خپلو معاشرتی صلاحیتونو ته وده ورکړی .

ج : " د کار کتاب " کښې پهٔ مشق پاڼو کار کول او زده کړه پرې کول پهٔ داسې طریقې سره مرتب کړے شوی دی چې ماشومان به تخکینی حاصل کړے شوی علم ته د ردې ورکولو پهٔ ذریعه نوې تجربې حاصلوی . پهٔ دې شان به هره ورځ تکرار او مشق نهٔ یې خونده کیږی او نهٔ به د نورو څیزونو زده کړه ډیره زیاته ګرانیږی . اکثر مشق پاڼې د نورو زیاتو همدغسې مشقونو دپاره چې پهٔ تورو تخته او یا پهٔ سلیټونو وکړے شی ، امکانات وړاندې کوی .

د : د ماشومانو د کار کتاب کښې د مشق پاڼو خطاطی د استاد انو او ماشومانو د خپل خط ( لیک ) ، یو مثالی نمونه ده . عددونه همیشه هم پهٔ یو شان طریقه لیکلے شوی دی ، ددې دپاره چې ماشومان یې پهٔ آسانه وپیژنی . کله چې استاد پهٔ تورو تخته لیکی نو هغه له هم دغه انداز خپلول پهٔ کار دی ، دپاره ددې چې ماشومان وارخطا نشی . داستاد دپاره دا ډیره زیاته ضروری ده ، چې حروف دې همیشه لوئ پهٔ منو منو او صفا لیکی . دا به د ماشومانو پهٔ آسانه لوستلو او پهٔ ښهٔ طریقه لیکلو کښې مرسته کوی .

۵- د کار کتاب کښې د پاکستانی او افغانی دواړو ډلو استاذانو دپاره سبقونه ورکړے ( لیکلے ) شوی دی . دا پهٔ یو داسې لهجه او خط کښې لیکلے شوی دی چې دد واړو ډلو استاذان پرې پوهیږی . د کار کتابونه پهٔ دوه عبارتونو کښې تیار کړے شوی دی یو د پاکستانی او بل د افغانی سکولونو دپاره . د کار د کتاب د افغانې سکولونو دپاره چاپ شوې مشق پاڼې لری .

۶- د کامیابه تدریس او زده کړې دپاره ضروری ده چې د موادونه پهٔ جاری ډول کار واخیستلے شی . تیاروونکی :

ریاضي
اول ټولګی
۱ - ۴۲

عنوان، د ۰۰ - ۲۰ پورې په سلسله کښې ورکوټي او لوی

| د استاد مشغلې | د شاگردانو مشغلې | درسي معاونات |
|---|---|---|
| | ۱- د ۰۰-۲۰ پورې په سلسله کښې، ورکوټي، لوی. | |
| - د ۰۰-۲۰ پورې عددي کارډونه استعمالول، بغیر د خوبښې پنځه کارډونه انتخابول (مثلاً ۷، ۱۵، ۴، ۱۹، ۱۱) پنځه طالبعلمان مخې ته رابلل، هر یو ته یو کارډ ورکول. | - مشاهده کول، د پنځو طالب علمانو په خوښه د کارډونو اخیستو د پاره مخې ته راتلل. | د ۰۰-۲۰ پورې عددي کارډونه |
| - غوښتنه کول چې د لږ شمیر نه د ډیرشمیر په لور په صحیح ترتیب سره ودریږي. | - د مخامخ ولاړو طالب علمانو بحث کول، ځانونه ترتیبول (۰۰۰۰۰۰۰۰) مثلاً ۴، ۷، ۱۱، ۱۵، ۱۹، د نورو مشاهده کول، مرسته کول. | |
| - د وضاحت غوښتنه کول چې دوی دا خاص ترتیب ولې خوښ کړو (۱) | - تجویزونه پیش کول، بحث کول، دلائل وړاندې کول. | |
| - کارډ نیونکو نه غوښتنه کول، چې خپل عددونه په توره تخته ولیکي چې څنګه ولاړ دي هم په هغه ترتیب سره. | - په توره تخته لیکل، د نورو مشاهده کول او چک کول. | توره تخته |
| - غوښتنه کول چې هر نمبر (عدد) د خپل کاونډي عدد سره مقابله کړي. | - وئیل مثلاً "۴ د ۷ نه ورکوټي دے"، "۷ د ۱۱ نه ورکوټي دے"، "۱۱ د ۱۵ نه ورکوټي دے"، "۱۵ د ۱۹ نه ورکوټي دے" بیا د لوی عدد نه شروع کول، "۱۹ د ۱۵ نه لوی دے" او داسې نور. | |
| - مشق په "۷" نورو عددونو سره تکرارول. | - د ۷ طالب علمانو چې هر یو سره یو عدد دے، مخې ته راتلل، په صحیح ترتیب کښې ودریدل، د ټولو طالب علمانو بحث کول، تشریح کول | د ۰۰-۲۰ پورې عددي کارډونه |
| | ۲- نور مشق | |
| - د مشق پاڼې د مطالعه کولو غوښتنه کول او کوم عملی کار چې اوس مکمل شوید ے، هغې سره ئې تعلق پیدا کول. په ړومبی مثال یوځای کار کول. | - مشق پاڼې مطالعه کول او په مثال کار کول. | مشق پاڼې را-۴۲-۱ |
| - مرسته کول، د بحث رهنمائي کول، اصلاح کول. | - د مشق پاڼې بنی طرف ته باقی دوه مشقونه مکملول، تشریح کول، نتیجې چک کول. | |
| - په طالب علمانو کرځیدل، چک کول، مرسته کول. | - ټول مشقونه مکملول، اندي وال سره ئې مقابله کول. | |
| - ټولګی ته د نتیجو د اورولو غوښتنه کول. | - ځانله ځانله د طالب علمانو ټولګی ته د نتیجو لوستل، د نورو اوریدل، مقابله ئې کول | |
| -۴۰- | -۴۵- | |

| درسي پلان نمبر: ر ۱-۴۲ | |
|---|---|

د دې درسي پلان په باب شوې نورې تبصرې:

(۱) د طالب علمانو ممکن عبارتونه: ۴ په سر کښې دے، ځکه چې دا ورکوټے عدد دے، ۱۹ په آخر کښې دے، ځکه چې دا لوی عدد دے، ۷ د ۴ نه پس دے، ځکه چې دا د ۴ نه لوی دے، د ۷ ځای د ۱۱ نه مخکښې دے، ځکه چې ۷ د ۱۱ نه ورکوټے دے، او داسې نور.

| 1 — 42 | 1/ |
|---|---|
| ۱ - ۴۲ | ر ۱ |

| | | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۲ | ۳ | ۱۹ | ۸ | ۱۴ | ۵ | ۱ | ۷ | ۹ | ۱۱ | ~~۲~~ | ۱۸ | ۶ |
| □ | □ | □ | □ | □ | □ | □ | □ | □ | □ | □ | □ | ۲ |
| ۱۵ | ۲ | ۷ | ۱۲ | ۳ | ۱۹ | ۱۸ | ۴ | ۲۰ | ۱ | ۴ | ۱۳ | ۷ |
| □ | □ | □ | □ | □ | □ | □ | □ | □ | □ | □ | □ | □ |
| ۱۲ | ۱۵ | ۱۸ | ۱۳ | ۲ | ۱۷ | ۹ | ۱۱ | ۴ | ۳ | ۱۶ | ۱۵ | ۱۷ |
| □ | □ | □ | □ | □ | □ | □ | □ | □ | □ | □ | □ | □ |

# د بل درسي پلان د بنوونځی د بنوونځي د ورځي درسونو خاکه

عنوان: د لوی او ورکوټي لوبه کول

| درسي معاونات | د شاګردانو / استاد مشغلې | |
|---|---|---|
| د ۰-۲۰ پورې عددي کارډونه | ۱- د ۰-۲۰ پورې د سلسلې نه د يو طالب علم يو عدد کارډ راخيستل، د هغې نور ټولګی ته ښودل خو استاد ته نه. د استاد پوښتنې کول د عدد د معلومولو د پاره مثلاً. دا د ۴۰ نه لوی دے؟ دا د ۱۲۰ نه ورکوټے دے؟ د ټولګی د استاد د سوال هر ځل جوابونه ورکول، تر هغه چې هغه د صحيح عدد اندازه ولګوی. په مختلفو عددونو د بر ځل تکرار کول. د ځينې طالب علمانو د عدد د معلومولو هغسې کوشش کول، څنګه چې مخکښې استاد کړی وو. | اول ټولګی درسي پلان |
| نوره تغنته مشق پاڼه را-۴۲-۲ | ۲- د استاد ۵ □ ۱ په توره تخته جوړول، پوښتنه کول چې کوم عدد به د خالی بکس د پاره مناسب وی. د طالب علمانو مختلف حلونه وړاندې کول، هر ځل د لوی، ورکوټي استعمالولو په ذريعه تشريح کول. | |
| مشق پاڼه را-۴۲-۲ | ۳- د طالب علمانو مشق پاڼې لوستل، په کارځان پوهول، د دوه ورکړے شوو عددونو منځ کښې د ځانله خالی بکس د ډکولو په ذريعه اووه (۷) مشترنه مکملول، متابله کول. | را-۴۲ |
| مشق پاڼه را-۴۲-۲ | ۴- د استاد د بر ځاں کار اعلان کول. د مشق پاڼې د کسې (ګټي) برخې پخپله د استعمالولو په ذريعه د طالب علمانو ممکن حلونه پيدا کول. د استاد چې کله د بر زيات ضرورت وی، مرسته کول. د بر و تجويزونو په اوچت اواز د لوستلو چک کول. | |

| 2-42 | را |
|---|---|
| ۲-۴۲ | را |

| | | |
|---|---|---|
| ۱ ۴ ۵ | ۷ □ ۱۳ | ۴ □ □ ۱۴ |
| ۱۱ □ ۱۹ | ۲ □ ۸ | ۹ □ □ ۱۶ |
| ۱۸ □ ۳۰ | ۱۱ □ ۲۰ | ۳ □ □ ۸ |
| ۶ □ ۱۳ | ۱۰ □ ۱۷ | ۸ □ □ ۱۱ |

عنوان: د ۰ - ۲۰ پورې په سلسله کښې د ورکوټي ، لوی ، نور مشق

| | د شاګردانو / استاد مشغاې |
|---|---|
| | ۱- د پنځو ، پنځو طالب علمانو دوه ګروپونه جوړول ، د استاد له طرفه . د ۰ - ۲۰ پورې عددي کارډونه ګډ وډول ، په بې ترتیبه ډول ۱۰ کارډونه تقسیمول . طالب علمانو ته د خپلو عددونو د کتلو اجازت نه ورکول . د استاد په اشاره د طالب علمانو خپلو کارډونو ته کتل او چې څومره زر کېدے شي په صحیح ځای کښې خپل ګروپ ترتیبول . نو لګی ته د چک کولو د پاره خپل عددونه ښودل . مختلفو ګروپونو او مختلفو عددونو سره شوخله تکرار کول . |
| مشق پاڼه را-۴۲-۳ | ۲- دریمې مشق پاڼې ته کتل ، د کار تشریح کول . د طالب علمانو د کالمونو ( ستونونو ) ، د لاندې خالی بکسونه او په صحیح عددونو د کول او بیا د لیکلے شوو عددونو د پاسه د کالمونو په بکسونو کښې صحیح عدد باندې سورے کول . |

3-42 | ۱/
۳-۴۲ | ۱/

۰ ۵ ۶ ۹ ۱۰

۱۸ ۱۷ ۱۳ ۱۰ ۷

عنوان، د ۰-۱۰ پورې او د ۱۰-۲۰ پورې په سلسله کښې جمع

| د استاد مشغلې | د شاګردانو مشغلې | درسي معاونات |
| --- | --- | --- |
| | **۱- د ۱۰-۲۰ پورې په سلسله کښې د جمع عملي تعارف** | |
| - غوښتنه کول چې درې ماشومان د ې مخې ته راشي. | - په خپله خوښه مخې ته راتلل، د نورو مشاهده کول، غوږ ورته نیول. | |
| - دوه نورو ماشومانو نه غوښتنه کول چې مخکښېنیو دریو ماشومانو سره یوځای شي، لږ ځنډ وروسته ترې ودریدل. | - په خپله خوښه مخې ته راتلل، مشاهده کول، غوږ نیول. | |
| - د عددی قیمې د ویلو خواست کول. | - عددی قیمې ویل.<br>«په اول سر کښې ....، بیا ورپسې ....، چې په نتیجه کښې ....» | |
| - په توره تخته د مساوات د لیکلو سراست کول. | - دیرماشوم په تخته مساوات لیکل ۳+۲=۵. | توره تخته |
| - په توره تخته لیکل ۱۳ + ۲ = □ | - مشاهده کول. | |
| - پوښتنه کول چې موږ ته د دې مساوات د ښودلو د پاره د نورو څو ماشومانو ضرورت دی؟ | - د مساوات مطالعه کول. محسوسول چې د لسو نورو ماشومانو ضرورت دی، جواب ورکول. | |
| - لسو نورو ماشومانو ته ویل چې مخې ته راشي او د مخه دریو ماشومانو سره یوځای شي چې د مخکښې نه یو طرف ته ولاړ دی. | - د لسو ماشومانو په خوښه مخې ته راتلل، د نورو مشاهده کول. | |
| - په توره تخته د مساوات د مکملولو غوښتنه کول. (۱) | - دیرماشوم په خوښه په توره تخته د مساوات مکملول. ۱۳ + ۲ = ۱۵ | |
| | **۲- نور مشق** | |
| - پنځو او بیا شلورو ماشومانو ته ویل چې مخې ته راشي او لږ شاني جدا ودریږي. | - په خپله خوښه راتلل، د نورو مشاهده کول. | توره تخته |
| - د عددی قیمې، مساوات او داسې نورو د ویلو غوښتنه کول او د مخکښې په شان عمل کول. | - د مخکښې په شان عمل کول، مساوات ۵ + ۴ = ۹ په توره تخته لیکل. | |
| - د مساوات ۱۵ + ۴ = □ وړاندې کول؛ د مخکښې قدم په شان لس نور طالب علمان ترتیبول او په حل کښې د هغوی مرسته کول (۲). | - په توره تخته د مخکښې په شان مساوات ۱۵ + ۴ = ۱۹ مکملول. | |
| - نور نور مساوات ورکول مثلاً: ۴ + ۳ = □<br>۱۴ + ۳ = □<br>۲ + ۷ = □<br>۱۲ + ۷ = □<br>په همدغه طریقه حل کول. | - د ورکړشوو مساواتو حل کول د مخکښې په شان. | |
| | **۳- د لیکلو مشق** | |
| - د مشق پاڼې د مطالعه کولو غوښتنه کول، په کار خبرې اترې کول (۳). | - د مشق پاڼې مطالعه کول او په کار خبرې کول. | مشق پاڼه ر ۱-۴۳ |
| - د مشق پاڼې د مکملولو غوښتنه کول، چک کول او که ضرورت وی نو مرسته کول. | - د مشق پاڼې مکملول، د انه یوال سره مقابله کول، بحث کول. | |

| درسي پلان نمبر: ر ۱ - ۴۳ | |
|---|---|

د دې درسي پلان په باب څو نوري تبصرې:

۱، استاد به د ۳+۲ = □ او ۱۳+۲ = □ تر منځ د مشابهتونو په باب د خبرو اترو لاره پرانيزي.

پوښتنه به کوي چې په دوه صورت حال کښې څه بدل شوي دي او څه نه دي بدل شوي؟

په توره تخته ليکل ۳+۲ = ۵ (وړيل چې مونږ ئې داسې شروع وکړه)

۳+۲ = ۵ (وړيل چې دانه دے بدل شوے: دا طالب علمان هم په خپل حالت کښې پاتې شو)

۱۳+۲ = ۱۵ (خوا اوس څه بدل شول، لس نور طالب علمان په کښې شامل شول)
(شول) (شوو)

۲، د لس طالب علمانو گروپ دې غاڼ يو شای ولاړ وي. طالب علمان به د دې خبرې پوهه ولري چې دا لس طالب علمان لکه د يو واحد (يونټ) په شان دي، چې د ۱۰ او ۲۰ تر منځه په سلسله کښې د مساوات حل کولو د پاره جمع کيدے شي.

۳، استاد د مثال په طور په ړومبنو مساواتو کار کولے شي که چرې هغه احساس کړي چې د دې ضرورت دے، خو بيا هم هر کله چې اوس اوس د شوي عملي کار سره د مشقونو پاڼې د ير نږدې تعلق دے، نو دا به نسبتاً اسان وي.

| 1—43 | ر1 |
|---|---|
| ۱-۴۳ | ر۱ |

| | | | |
|---|---|---|---|
| □ = □ + □ | □ = □ + □ | □ = □ + ۱۵ | □ = ۲ + ۵ |
| □ = □ + □ | □ = □ + □ | □ = □ + □ | □ = □ + □ |
| □ = □ + □ | □ = □ + □ | □ = □ + □ | □ = □ + □ |

د بل درسی پلان د ښودلو نه مخکښې د وړیې درسونو خاکې

| د شاگردانو / استاد مشغلې | درسی معاونات | اول صنف درسی ورځي ۴۲ - ۱ر |
|---|---|---|
| عنوان: د ۰ - ۱۰ پورې او ۱۰ - ۲۰ پورې پهٔ سلسله کښې د جمع نورمشق | | |
| ۱- یو شاگرد ته ووئیل چې مخې ته راشی ، بیا د ربې نورشاگردان مخې مته را بلل، پهٔ توره تخته د مساوات لیکل ۱+۳ = ۴<br>۲- پهٔ توره تخته دا سې نقطې اچول چې پهٔ مساوات کښې عددونوسره مطابقت ولری.<br>۳- مساوات لیکل : ۱ + ۱۳ = □<br>۴- د مساوات د مکملولو غوښتنه کول .<br>۵- د مساوات د مکملولو د پاره د مناسبو نقطو اچولو غوښتنه کول .<br>۶- د شاگردانو د مساوات مطابق د نقطو نه چاپېره دکرښو را ښکلو پهٔ ذریعه مشق پاڼې مکملول. | توره تخته<br><br><br><br><br>مشق پاڼه ر۱-۴۲-۲<br>توره تخته | |

| 2–43 | 1ر |
|---|---|
| ۲-۴۳ | ۱ر |

| | |
|---|---|
| ٦ + ٢ = □<br>٦ + ١٢ = □ | ٣ + ١٥ = □<br>٣ + ٥ = □ |
| ٢ + ٧ = □<br>٢ + ١٧ = □ | ٥ + ٥ = □<br>٥ + ١٥ = □ |
| ١ + ١٨ = □<br>١ + ٨ = □ | ٩ + ١١ = □<br>٩ + ١ = □ |

عنوان: مساوات کښې بدلون (فرق)

| | د شاگردانو /استاد مشغلې |
|---|---|
| | ۱- د ۰ - ۱۰ پورې او د ۱۰ - ۲۰ پورې په سلسلوکښې ذهنی جمع (مثلاً ۵ + ۳ = □ او ۱۵ + ۳ = □ یا ۵ + ۱۳ = □). |
| مشق پاڼه ر۱-۴۳-۳ | ۲- دریمې مشق پاڼې ته کتل. د نتیجو ډکول (پوره کول)، مقابله کول، اصلاح کول. |
| | ۳- د استاد □ = ۲ + ۲ په توره تخته لیکل، شاگردانو ته د حل کولو د پاره وئیل. □ = ۱۲ + ۲ لاندې لیکل. شاگردانو ته وئیل چې غیبه جمع معلومه کړی. |
| مشق پاڼه ر۱-۴۳-۴ | ۴- څلورمې مشق پاڼې ته کتل، په مثال خبرې کول. شاگردانو ته وئیل چې مساوات په خپله مکمل کړی. د ضرورت په وخت مرسته کول، چک کول، اصلاح کول. |



3-43 ر۱
۳-۴۳ ر۱

| | | |
|---|---|---|
| ۳ + ۵ = □<br>۳ + ۱۵ = □ | ۷ + ۲ = □<br>۱۷ + ۲ = □ | ۳ + ۲ = □<br>۱۳ + ۲ = □ |
| ۲ + ۶ = □<br>۲ + ۱۶ = □ | ۵ + ۴ = □<br>۱۵ + ۴ = □ | ۲ + ۰ = □<br>۱۲ + ۰ = □ |
| ۷ + ۳ = □<br>۷ + ۱۳ = □ | ۰ + ۳ = □<br>۱۰ + ۳ = □ | ۴ + ۱ = □<br>۱۴ + ۱ = □ |

4-43 ر۱
۴-۴۳ ر۱

| | | |
|---|---|---|
| ۴ + ۴ = □<br>□ + □ = ۱۸<br>□ + □ = ۱۸ | ۱ + ۶ = □<br>□ + □ = ۱۷<br>□ + □ = ۱۷ | ۲ + ۳ = ۵<br>۱۲ + ۳ = ۱۵<br>۲ + ۱۳ = ۱۵ |
| ۲ + ۱ = □<br>□ + □ = ۱۳<br>□ + □ = ۱۳ | ۴ + ۵ = ۹<br>□ + □ = ۱۹<br>□ + □ = ۱۹ | ۳ + ۷ = □<br>□ + □ = ۲۰<br>□ + □ = ۲۰ |

ریاضي
اول ټولګی
را - ۴۴

عنوان، جمع د انتقال سره «۱۰» انتقالول،

| د استاد مشغلې | د شاګردانو مشغلې | درسي معاونات |
|---|---|---|
| | ۱- داسې جمع پیدا کول چې حاصل ئې «۱۰» وی | |
| - بورداسې مساوات ورکول لکه: ۳+۷ = ، همدغه قسم یو بل مساوات ورکول: ۴ + ٦ =<br>- د طالب علمانو نه غوښتنه چې نور داسې مساوات پیدا کړی چې حاصل ئې «۱۰» وی.<br>- پهٔ مشق پاڼه را - ۴۴ - ۱ خبرې اترې کول، سرسته کول، چیک کول. | - پهٔ زباني طور دغه مساوات مکملول.<br>- د مساوات پیدا کول، پهٔ توره تخته لیکل لکه: ۹ + ۱ = ۱۰ ، ۳ + ۷ = ۱۰ او داسې نور.<br>- پهٔ مشق پاڼه ځان پوهول، د مساوات د مکملولو د پاره خالي بکسونه ډکول. | توره تخته<br>مشق پاڼه را-۴۴-۱ |
| | ۲- د هغه مساوات بښودل چې لس «۱۰» پکښې انتقالیږي | |
| - پهٔ خاموشۍ سره پهٔ توره تخته د مساوات ۵ + ۸ = لیکل، غوښتنه کول چې د حل د پیدا کولو د پاره د پنسلونو یا نورو شیزونو نه کار واخلي.<br>- د هغه پنسل کارډونو ښودل چې «۵» او «۸» پنسلونه ورباندې جوړ دی، اول ئې یو بل ته نږدې کول او بیا ئې لرې نیول «۱»<br>- شپږ ټکي او اووه ټکي د یو بل نه لږ څهٔ پهٔ جدا فاصله جوړول لکه داسې: ...... ....... بیا ددې د مساوات غوښتنه کول. د دغه ټکو د پاسه د هغه مساوات لیکل چې شاګردانو پیدا کړې دی.<br>- د ټکو پهٔ مرسته قدم په قدم د مساوات پهٔ حلولو کښې لارښوونه کول «۲»<br><br><br><br><br>- پهٔ همدې طریقه د دو نورو مساواتو د حلولو لارښوونه کول لکه: ۹ + ٦ = ☐<br>۷ + ۸ = ☐ | - مشاهده کول؛ څهٔ چې کول غواړی پهٔ هغې بحث کول: «۵» پنسلونه او «۸» پنسلونه یو ځای ایښودل، د حاصل د پیدا کولو د پاره ئې شمېرل: «۱۳» پنسلونه، د مساوات پهٔ توره تخته مکملول. ۵ + ۸ = ۱۳<br>- د شاګردانو د ویناکول: موږ اول «۵» او «۸» پنسلونه لرل. کهٔ چیرې ئې یو ځای کېږدو نو «۱۳» پنسلونه یا «۳» او «۱۰» پنسلونه کیږی.<br>- د ټکو شمېرل - د مساوات ٦ + ۷ = ☐ پیدا کول، مشاهده کول.<br>- د «۱۰» ټکو نه کرښه چاپېرول، د هغې پهٔ مطابقت د مساوات پیدا کول؛ (.... ......) ...<br>٦ + ۴ = ۱۰<br>نورې پاتې درې نقطې ور سره جمع کول ۱۰ + ۳ = ۱۳<br>دا ولنی مساوات لیکل او ځان پرې پوهول ٦ + ۷ = ۱۳<br>- پهٔ مساوات باندې پهٔ همدغه طریقه کار کول؛ پهٔ دې ځان پوهول چې دا مساوات به پهٔ دوه قدمه کښې حلوو؛<br>الف: «۱۰» ته رسېدل،<br>ب: باقي ور سره جمع کول. | توره تخته<br>پنسلونه<br><br><br>داعدادو کارډونه «۰ - ۱۰»<br>«د پنسلونو تصویرونه»<br><br>توره تخته |
| | ۳- پهٔ هغه مساوات کښې مشق چې «۱۰» پکښې انتقال مومي | |
| - د دویمې مشق پاڼې د مطالعه کولو غوښتنه کول.<br><br><br>- غوښتنه کول چې مساوات داسې حل کړئ لکه څنګه چې مو پهٔ تخته حل کړې، د ضرورت پهٔ اندازه مرسته کول.<br>- غوښتنه کول چې نتیجې ټولګی ته ولولئ. | - د مشق پاڼې مطالعه کول، پهٔ کار بحث کول او ځان پرې پوهول، مساوات پهٔ هغه طریقه حلول چې اوس اوس زده کړې شوه.<br>- پهٔ خاموشۍ سره کار کول: د لسو ټکو نه کرښه چاپېرول د مساوات موندل او حلول.<br>- بېل بېل شاګرد پهٔ اوچت اواز نتیجې لولی، د نورو ځېرنېول، مقابله کول، اصلاح کول. | مشق پاڼه را-۴۴-۲ |

| درسي پلان نمبر: ١ر-٤٤ | |
|---|---|

د دې درسي پلان په باب ځينې نورې تبصرې ،




١، په دوه کارډونو جدا جدا شروع کول ،

بیا کارډونه دیوبل د پاسه یوبل ته ور ومښلکه داسې:

استاد به د شاګردانو پام دې ته راګرځوي چې د یو کارډ د «٥» پنسلونو او د بل کارډ د «٥» پنسلونو نه د «١٠» یو ګروپ جوړېدے شي. دا د مساواتو د هغه عملیو او مشقونو د پاره یو تیاری دے کوم چې به روستنه راځي او د لسو «١٠» انتقال به پکښې شامل وي.

٢، په کارده چې هغه جمع چې «١٠» پکښې بلې خواته اړول کیږي قدم په قدم وښودل شي او مشق ئې وشي . دا سرقدم پکښې جدا جدا ښودل شوي دي، مثلاً: ٦+٤ = ١٠ او ١٠ + ٣ = ١٣

ماشومان به اوس خامخا په دې پوهه ولري چې د دې قدمونو نه کار واخيستلے او د «١٠» په اړولو سره دا مساوات حل کړے شي .

عبارتونه به داسې وي :

فرضیه : ٦ + ٧

موږ پوهیږو چې داشنګه جمع کړو: ٦ + ٤ = ١٠

په کارده چې موږ «٧» ورسره جمع کړو خو موږ تر اوسه صرف «٤» ورسره جمع کړي دي . د دې وجې نه د «٣» نورو ورسره جمع کول په کار دي : ١٠ + ٣ = ١٣

په لنډه توګه : ٦ + ٧ = ١٣

| | | |
|---|---|---|
| 1_44 ١ر / ١-٤٤ ١ر<br>١٠ = □ + ٦<br>١٠ = ١ + □<br>١٠ = □ + ٢ | ١٠ = ٤ + □<br>١٠ = ٥ + □<br>١٠ = ٧ + □ | ١٠ = □ + ٣<br>١٠ = □ + ٢<br>١٠ = □ + ٦ |
| □ + □ = ١٠<br>□ + □ = ١٠<br>□ + □ = ١٠ | ٨ + □ = ١٠<br>٣ + □ = ١٠<br>٥ + □ = ١٠ | □ + ٤ = ١٠<br>□ + ٩ = ١٠<br>□ + ٨ = ١٠ |

| | |
|---|---|
| 2_44 ١ر / ٢-٤٤ ١ر<br>٨ + ٤<br>● ● ● ● ● ● ● ●  ● ● ● ●<br>١٠ = □ + ٤<br>□ = □ + ١٠<br>□ = ٨ + ٤ | ٥ + ٧<br>● ● ● ● ●  ● ● ● ● ● ● ●<br>١٠ = □ + ٧<br>□ = □ + ١٠<br>□ = ٥ + ٧ |

ریاضي
اول ټولګی
ر ۱ - ۳۳

عنوان: د عدد «۱۰» ښودل، د لسو لسو ګروپونه ترتیبول

| د استاد مشغلې | د شاګردانو مشغلې | درسي مصارفات |
|---|---|---|
| | ۱- د نهو پورې شمېر کول او د عددونو پېژندنه کول | |
| - د نهو ماشومانو ته غوښتنه کول چې د ټولګي په مخ کښې په یو قطار کښېني.<br>- د یو عدد ویل لکه عدد «۲» (۱)<br>- غوښتنه کول چې ولاړ شاګردان چک کړئ چې صحیح شمېر ولاړ دي او که نه؟<br>- په مختلفو شمېرو سره د نهو پورې د دې مشق تکرارول. (۲) | - په خوښه مخې ته راتلل، کښېناستل، د نورو مشاهده کول.<br>- د همدغه شمېر شاګردانو ولاړېدل یعنې د دوه شاګردانو. د نورو غوږ نیول او شمېرل.<br>- د شمېر چک کول، د ضرورت په وخت اصلاح کول.<br>- د هدایت په شان عمل کول، په اوچت آواز شمېر کول، کره کول (چک کول)، اصلاح یې کول. | |
| | ۲- د عدد «۱۰» ښودل | |
| - نهه واړو شاګردانو ته ویل چې ودرېږئ، یو بل شاګرد ته ویل چې ته ور سره یو ځای شه.<br>- پوښتنه کول چې اوس ټول څو تنه شاګردان شول که ضرورت وو نو د «۱۰» په ویلو کښې ور سره مرسته کول.<br>- «۱۰» په توره تخته ښه غټ لیکل، اشاره ورته کول.<br>- د لسو شاګردانو یو بل ګروپ مخې ته رابلل، مختلفې شمېرې ویل، لس به هم پکښې شامل وي.<br>- مشق پاڼه ر۱- ۳۳- ۱ توضیح کول، کره کول، د ضرورت په وخت مرسته کول. | - غوږ نیول او مشاهده کول.<br>- شمېرل او «لس» ویل کله چې پرې کوم یو ته پته وي. د مخې ته ولاړو شاګردانو شمېرل په اوچت آواز (۱ - ۱۰)<br>- ورته کتل، د دغه عدد (شمېر) بیا بیا ویل.<br>- په خوښه مخې ته راتلل او د هدایت په شان عمل کول؛ د نورو شمېرل او کره (چک) کول.<br>- د مشق مکمل کول؛ بیا یې د هغه ګروپ نه کرښه تاوول چې د لسو پورې عددونه لري، د ناستې وال سره د کار مقابله کول، بحث کول، چک (کره) کول. | توره تخته<br><br>مشق پاڼه ر۱-۳۳-۱ |
| | ۳- د لسو «۱۰» پورې په شمېرلو کښې مشق کول | |
| - مشق پاڼه ر۱-۳۳-۲ تشریح کول؛ د شاګردانو د سرو نو د مثال نه کار اخیستل. پوښتنه کول چې څو سرونه دي او څو سره نور په کار دي چې «۱۰» شي.<br>- د ماشومانو نه غوښتنه کول چې پنځه سره نور جوړ کړئ چې ټول «۱۰» شي؛ که چېرې خبره واضح نه وي نو بیا تشریح کول چې ماشومان ښه پوه شي.<br>- په ماشومانو مشق پاڼه مکملول. د ضرورت په اندازه مرسته کول؛ چک کول (۳) | - غوږ نیول او جواب ورکول؛ د صحیح جواب موندل یعنې پنځه «۵».<br>- سرونه جوړول (رسمول)، لکه څنګه چې ترې غوښتنه شوې ده<br>- د ضروري شیانو لکه د کلانو، ماهیانو او نورو په جوړولو (رسمولو) سره مشق پاڼه مکملول چې د هر یو قسم نه لس لس شیانونه وي. د ناستې وال سره د کار مقابله کول، په کړي کار اصلاحول، خبرې کول. | مشق پاڼه ر۱-۳۳-۲ |

د بل درسي پلان د ښودلو نه منلکښي د ورپسې درسونو خاکې

| | |
|---|---|
| **عنوان: د ۱۰ نه په انتقال (اړولو) سره د جمع مشق کول** | |
| **دشاگردانو / استاد مشغلې** | **درسي معاونات** |
| ۱- ذهني تربیه: د ۰ - ۱۰ پورې په سلسله کښې او بیا د ۱۰-۲۰ پورې په سلسله کښې جمع. | |
| ۲- د مساوات ۴+۸ حل په توره تخته باندې (د همغه تدمرینونه به کار اخیستل کیږي کوم چې درېیمه مشق پاڼه کښې دي خو چټکه مشق پاڼه به اوس نه استعمالیږي). نور مشتونه په تخته تکرارول، بحث کول (تجویز شوي مساوات ۹ + ۵ = ، ۴ + ۸ = ). | توره تخته |
| ۳- په درېیمه مشق پاڼه خبرې اترې کول: پته لگول چې دا مشتونه هم همداسې دي کوم چې په تېر قدم کښې تېر شول. د کار مکملول د شاگردانو له خوا (کرښې جوړول، د مساوات حلول، د خالي بکسونو ډکول)؛ ټول مساوات په اوچت آواز لوستل. | مشق پاڼه ر۱-۴۴-۳ |

اول ساعت درسي پاڼي ۴۴-ر۱

| | |
|---|---|
| ر۱ | 3—44 |
| ر۱ | ۳-۴۴ |

۳ + ۹
$\square$ = $\square$ +۱۰ ، ۱۰ = $\square$ + ۳
$\square$ = ۹ + ۳

۶ + ۷
$\square$ = $\square$ +۱۰ ، ۱۰ = $\square$ + ۶
$\square$ = ۷ + ۶

۷ + ۷
$\square$ = $\square$ +۱۰ ، ۱۰ = $\square$ + ۷
$\square$ = ۷ + ۷

۷ + ۴
$\square$ = $\square$ +۱۰ ، ۱۰ = $\square$ + ۷
$\square$

عنوان: د ۱۰ په انتقال (اړولو) سره د جمع بنودل او تمرین

| | د شاګردانو /استاد مشغله |
|---|---|
| | ۱- ذهنی تربیه، د ۳-۹ پورې عددونه په دوه برخو تجزیه کول لکه: (۷ = ۵+۲ یا ۷ = ۳+۴ یا ...... یا) |
| توره تخته مشق پاڼه را-۴۴-۴ سلېټونه | ۲- په تخته د یو مساوات لیکل د معلم له خوا چې د څلورمې مشق پاڼې نه اخیستل شوې وي په سلېټونو باندې د دوو عددونو د جوړولو په ذریعه ددې مساوات حلول د شاګردانو له خوا. دغه دوه عددونه په ټکو ټکو کېښې ښودل شوي دي. د ۱۰ ټکونه کرښه چاپېرول ددې دپاره چې د جمع عمل په دوه قدمونو کېښې ښه روښانه شي. قدمونه او مکمل مساوات په سلېټونو لیکل (جوړه جوړه کار کول). د ځینو طالب علمانو په اوچت اواز لوستل، د سلېټونو چک کول د معلم په ذریعه. |
| مشق پاڼه را-۴۴-۴ | ۳- څلورمې مشق پاڼې نه کتل: په کارځان پوهول. د مساوات مکملول. د مساوات د پوهېدلو او حلولو دپاره که ضرورت وو په سلېټونو ټکي ویستل او کرښې ترې چاپېرول، په مساوات د پوهېدلو او ددې د حل کولو د پاره د مرستې په غرض. |

| | | |
|---|---|---|
| ۴→۴۴ \| ر/۱<br>۴-۴۴ \| ۱ر | ۸ + ۴ = □ | ۵ + ۶ = □ |
| ۹ + ۶ = □ | ۸ + ۳ = □ | ۴ + ۷ = □ |
| ۹ + ۹ = □ | ۸ + ۹ = □ | ۴ + ۹ = □ |
| ۷ + ۸ = □ | ۵ + ۸ = □ | ۶ + ۷ = □ |
| ۷ + ۹ = □ | ۵ + ۷ = □ | ۶ + ۵ = □ |
| ۷ + ۵ = □ | ۵ + ۹ = □ | ۶ + ۹ = □ |

ریاضي
اول ټولګی
ر ۱ - ۴۵

عنوان: د ۰ - ۲۰ پورې پهٔ سلسله کښې جمع د اړولو (انتقال) سره او د انتقال نه پهٔ غیر

| د استاد مشغلې | د شاګردانو مشغلې | درسي معاونات |
| --- | --- | --- |
| | ۱- د ۲ عددونو جمع کول د ۱۰ د انتقال نه پهٔ غیر | |
| - د جمع کولو د پاره ۲ عددونه پهٔ مزه مزه وښیل چې حاصل یې د ۱۰ نه ټیټ (زیات، نهٔ وی (مثلاً ۳ + ۲ + ۳ ) | - پهٔ یادو یې حسابول، پهٔ خاموشه سره دد عدد مساوات لیکل پهٔ سلېټونو باندې؛ بیا څو شاګردان خپل حلونه لولي، د نورو چک کول، اصلاح کول. | سلېټونه |
| - پهٔ مزه مزه د ۲ عددونو وښیل مثلاً (۲ + ۲)، غوښتنه کول چې یو داسې دریم عدد ددغه ۲ عددونو سره پهٔ خاموشه ولیکئ چې حاصل جمع ۱۰ ته ورسوی. | - پهٔ یادو یې حسابول. حل پهٔ خاموشۍ سره پهٔ سلېټونو باندې لیکل (مثلاً ۶+ ) چک کول. | |
| - د یو دوه رقمي عدد (د دوو هندسو والا) مثلاً ۱۲، وښیل او دوه نور د یوې هندسې والا عددونه (دوه رقمي عددونه)، لکه (۲ ، ۴ ) وښیل چې ورسره جمع شي او حاصل جمع یې د ۲۰ نه زیات نهٔ شي. | - پهٔ یادو یې حسابول، لیکل یې، لوستل یې، د ځکښې پهٔ شان چک کول. | |
| - دیو عدد وښیل چې دوه هندسې (دوه رقمي عدد) ولري او یو بل عدد چې یو رقمي (یوې هندسې والا) وي چې حاصل جمع یې د ۲۰ نه کم وي مثلاً ۱۲ + ۲ = ۱۴ او د یو داسې دریم عدد د ورسره جمع کولو غوښتنه کول چې حاصل جمع یې ۲۰ ته ورسیږي. | - حسابول یې، لیکل یې، لوستل یې (مثلاً ۱۵+ او ټول مکمل مساوات ۱۲ + ۲ + ۵ = ۲۰)، او د ځکښې پهٔ شان چک کول. | |
| | ۲- د دوو عددونو جمع کول، د ۱۰ اړول (پهٔ یو لوبه کښې) | |
| - ۸ + ۷ پهٔ تخته لیکل، غوښتنه کول چې پهٔ قدمونو کښې حل پیدا کړئ؛ اول د ۱۰ پورې جمع کول. | - وښیل: ۸ + ۲ = ۱۰<br>۱۰ + ۵ = ۱۵<br>۸ + ۷ = ۱۵<br>پهٔ توره تخته د مساوات لیکل. | توره تخته |
| - د درې طالب علمانو یو ګروپ مخې ته رابلل، پهٔ توره تخته لیکل ۴ + ۸ | - پهٔ ټیټ آواز د درې طالب علمانو بحث کول؛ بیا وښیل: ۴ + ۶ = ۱۰، ۱۰ + ۲ = ۱۲، ۴ + ۸ = ۱۲ (لیکل کیږی به نهٔ)، د نورو چک کول، شاباسه وښیل. | |
| - د درې طالب علمانو پهٔ یو بل ګروپ سره جاري ساتل، یو مساوات ورکول مثلاً (۷ + ۵ = )، غوښتنه کول چې پهٔ قدمونو قدمونو سره یې حساب وکړئ. پهٔ ګروپ کښې د بحث کولو نه روسته یې سرف حاصل وښیل څو مشتونه د نورو مساواتو. | - ځانله ځانله د درې طالب علمانو حسابول پهٔ قدمونو کښې، پهٔ نتنا ټګو خبرې کول؛ پهٔ آخر کښې نتیجه وښیل مثلاً ۷ + ۵ = ۱۲ | |
| | ۲- د دوو عددونو جمع کول، ۱۰ انتقالول (پهٔ مشق پاڼو) | |
| - پهٔ مشق پاڼو کښې د مساوات د مکملولو د پاره غوښتنه کول چې پهٔ ګروپونو یا جوړه جوړه کښې کار وکړی شي. د چک کولو د سپیاره د مشق پاڼې د اولنی مثال پهٔ مرسته د حاصل شوو عددونو (نتیجو) د چرخي کولو د چل ښودل (۱). | - د حلونو د پیدا کولو د پاره پهٔ ټیټ آواز پهٔ قدمونو خبرې کول؛ بیا حل پهٔ مشق پاڼو کښې لیکل او د مشق پاڼې پهٔ آخر کښې بکسونو کښې حاصل شوی عددونو باندې چرخه (ځلیپا) کول | مشق پاڼه ر۱-۴۵-۱ |

| درسي پلان نمبر: ر۱-۴۵ | |
|---|---|

د دې درسي پلان په باب څه نورې تبصرې :

(۱) د مشق پاڼې په آخر کښې په لوئې بکس کښې دومره عددونه دي لکه څومره چې د مشق پاڼې په سر کښې نتيجې دي. د دې مساواتو د حلولو نه روسته د هغه عدد پيدا کول او په لوئ بکس کښې چرخه کول په کار دي کوم چې ليکلے شوے دے. که چېرې يو طالب علم هم هغه عدد نه شي پيدا کولے کوم چې هغه ځکښې ليکلے دے نو هغه به غلطي کړې وي. په آخر کښې به په لويو بکسونو کښې ټول عددونه چرخه کيږي که چېرې ټول نتائج صحيح وي.

| | | |
|---|---|---|
| ۹ + ۳ = [۱۲] | ۸ + ۸ = [ ] | 1-.45 ر1 / ۱-۴۵ ر۱ |
| ٦ + ۸ = [ ] | ۴ + ۷ = [ ] | ۹ + ٦ = [ ] |
| ٦ + ٦ = [ ] | ۵ + ۸ = [ ] | ۸ + ۹ = [ ] |
| ۷ + ۴ = [ ] | ۸ + ٦ = [ ] | ۹ + ۹ = [ ] |
| ٦ + ۵ = [ ] | ۷ + ۹ = [ ] | ٦ + ۷ = [ ] |

~~۱۲~~ ۱۶ ۱۵ ۱۱ ۱۲ ۱۳ ۱۴

۱۴ ۱۶ ۱۳ ۱۱ ۱۷ ۱۸ ۱۱

| | |
|---|---|
| عنوان: عددونه په دوه برخو تجزیه کول | |
| **دشاګردانو / استاد مشغلې** | **درسي معاونات** |
| ۱- ۳ = □ + □ په توره تخته لیکل داستاد له طرفه: د شاګردانو په ذریعه د خالي بکسونو نه کول مثلاً ۳ = ۱ + ۲ ) داستاد بیا لیکل ۳ = □ + □ سره په خاموشۍ سره ( انتظار کول ) . د شاګردانو په ذریعه لیکل مثلاً ۳ = ۲ + ۱ ر په دې مثال او راتلونکو مشقونو کښې مونږ دا سې تجزیه نه کوو لکه ۰ + ...... څکه چې دا د ۱۰ دا پړولو ( انتقال ) دپاره کوم اهمیت نه لري ). <br> ۲- داستاد په تخته لیکل : ۴ = □ + □ . د شاګردانو لیکل ، مثلاً ۴ = ۲ + ۲ داستاد دوه ځله نور لیکل: ۴ = □ + □. د شاګردانو لیکل: ۴ = ۱ + ۳ او ۴ = ۳ + ۱ <br> ۳- د ټکښې په شان عمل کول او لیکل: ۵ = □ + □ . ( څلور حلونه: ۱ + ۴ ، ۲ + ۳ ، ۳ + ۲ ، ۴ + ۱ ). | توره تخته |
| ۴- دویمې مشق پاڼې ته کتل ، په جوړو کښې کار کول او تجزیه کول جاري ساتل. د ټولو حلونو د پیدا کولو کوشش کول . | مشق پاڼه را-۴۵-۲ |
| ۵- د ټولو حلونو لوستل ، مقابله کول ، اصلاح کول ( طالب علمان به په صحیحو حلونو دا نخښه ( ✓ ) لګوي ، استاد د چک کولو دپاره څه وخت ته ضرورت لري ، څکه چې صحیح نتائج په مشق پاڼه کښې په مختلفو ترتیبونو سره کیدے شي ، له دې سببه ئې چک کول سخت کار دے). | مشق پاڼه را-۴۵-۲ |

| 2-45 | 1ر |
|---|---|
| ۲-۴۵ | ۱ر |

| | | | |
|---|---|---|---|
| □ + □ = ۹ | □ + □ = ۸ | □ + □ = ۷ | □ + □ = ٦ |
| □ + □ = ۹ | □ + □ = ۸ | □ + □ = ۷ | □ + □ = ٦ |
| □ + □ = ۹ | □ + □ = ۸ | □ + □ = ۷ | □ + □ = ٦ |
| □ + □ = ۹ | □ + □ = ۸ | □ + □ = ۷ | □ + □ = ٦ |
| □ + □ = ۹ | □ + □ = ۸ | □ + □ = ۷ | □ + □ = ٦ |
| □ + □ = ۹ | □ + □ = ۸ | □ + □ = ۷ | □ + □ = ٦ |
| □ + □ = ۹ | □ + □ = ۸ | □ + □ = ۷ | |
| □ + □ = ۹ | □ + □ = ۸ | | |
| □ + □ = ۹ | | | |

عنوان: د دوو عددونو د جمع کولو مشق کول، د ۱۰۰ اړول

| د شاګردانو / استاد مشغله | |
|---|---|
| ۱- ۸ + □ = ۱۴ په توره تخته لیکل د استاد له طرفه، حلونه پیدا کول د شاګردانو له طرفه، بحث کول (مثلاً ویل: په اول کښې سونږ ۲۰ ورسره جمع کوو چې ۱۰۰ ته ورسیږو، بیا ورسره نور ۴۰ جمع کوو، بیعتب نور تال ورسره ۶۰ جمع کوو. | توره تخته |
| ۲- □ + ۷ = ۱۲ په توره تخته لیکل د استاد له طرفه. د حل پیدا کول د شاګردانو له طرفه؛ د څکینې په شان پرې بحث کول. | توره تخته |
| ۳- درسي مشق پاڼې ته کتل؛ په دوه دوه کسه کار کول؛ د ۴۵ نمبر درسي پلان په شان د چک کولو د پاره په ټولو حلونو چرخه کول؛ د استاد ګرځیدل راګرځیدل په شاګردانو کښې، چک کول، مرسته کول. | مشق پاڼه ر۱-۴۵-۳ |

| | | |
|---|---|---|
| 1ر 3-45 / ر۱ ۳-۴۵ | | |
| □ + ۳ = ۱۱ | ۹ + □ = ۱۵ | ۴ + ۷ = [۱۱] |
| □ + ۴ = ۱۱ | ۸ + □ = ۱۶ | ۶ + ۶ = □ |
| □ + ۹ = ۱۸ | ۷ + □ = ۱۴ | ۸ + ۴ = □ |
| □ + ۷ = ۱۵ | ۳ + □ = ۱۲ | ۹ + ۲ = □ |
| □ + ۸ = ۱۱ | ۸ + □ = ۱۷ | ۴ + ۹ = □ |
| □ + ۹ = ۱۳ | ۶ + □ = ۱۱ | ۶ + ۸ = □ |



## عنوان: د ۱۰-۲۰ پورې په سلسله کښې د تفریق ښودل

| د استاد مشغلې | د شاګردانو مشغلې | درسي معاونات |
|---|---|---|
| | **۱- د ۱۰-۲۰ پورې سلسله کښې د تفریق عملی مظاهره کول** | |
| - اته (۸) طالب علمان مخې ته را بلل. | - مخې ته راتلل، د نورو مشاهده کول. | |
| - په دغو اتو (۸) شاګردانو کښې پنځو ته ووئیل چې بیرته لاړ شي. | - د ۵ - طالب علمانو بیرته تلل. | |
| - اوس د عددی قصې د وئیلو غوښتنه کول. | - د عددی قصې وئیل: «په اول کښې ۸ طالب علمان وو، بیا ترینه (۵) بیرته لاړل نو ۳ تنه پاتې شول». | |
| - د متعلقه مساوات غوښتنه کول. | - په توره تخته لیکل: ۸ - ۵ = ۳ | توره تخته |
| - دغو ۸ طالب علمانو ته ووئیل چې بیا په ټولګی کښې ودریږئ. | - بیا مخې ته راتلل او ودریدل. | |
| - په توره تخته ددې نامکمل مساوات (۱۸-۵=□) لیکل. | - مشاهده کول. | توره تخته |
| - پوښتنه کول چې طالب علمان به ددې مساوات دحلولو د پاره څنګه عمل کوي. | - جواب ورکول: ۱۰ نورو طالب علمانو ته ضرورت دے چې مخې ته راشي. | |
| - د ۱۰ نورو طالب علمانو نه غوښتنه کول چې مخې ته را شي. | - د ۱۰ نورو طالب علمانو مخې ته راتلل. | |
| - غوښتنه کول چې د مساوات په مطابقت دې عمل وکړے شي. | - د ۵ طالب علمانو په لرې کولو سره مساوات عملی کول. | |
| - د عددې قصې د وئیلو غوښتنه کول. | - عددی قصه وئیل. | |
| - په توره تخته د مساوات د مکملولو غوښتنه کول. | - په توره تخته د مساوات ۱۸-۵ = ۱۳ مکملول چې بیا سره لوستلې شی: ۸ - ۵ = ۳ ، ۱۸ - ۵ = ۱۳ | توره تخته |
| | **۲- د ۰-۱۰ اود ۱۰-۲۰ پورې په سلسلو کښې د تفریق مشق کول** | |
| - ۷ ټکی په توره تخته ویستل، غوښتنه کول چې د ۷ - ۴ = ۳ تفریق به څنګه عملاً ښودل کیږي. | - په ۴ ټکو باندې په توره تخته کښې چرخې کول، وئیل: «په اول کښې ۷ ټکی وو خو په ۴ ټکو مو ترینه چرخه راښکله نو ۳ باقی پاتې شول». | توره تخته |
| - ۱۷ ټکی په توره تخته جوړول (۱)، غوښتنه کول چې مساوات ۱۷-۴ = ۱۳ حل کړے شي! | - بیا په څلورو ټکو چرخه راښکل (د پاسنه کرښې). - د ۱۰ - ټکو د کرښې سره غرض نه لرل؟ عددی قصه د پاس په شان وئیل. | |
| - اولې مشق پاڼې ته دکتلو غوښتنه کول. | - په کاربانډې ځان پوهول، کوم دوه مساوات چې په یو بکس کښې لیکلې شوی دی همېشه یې یو ځای حلول. | مشق پاڼه را-۴۶-۱ |
| - مرسته کول، چک کول، د بحث لار ښودنه کول. | - بحث کول، چک کول، نتیجې په توره تخته لیکل. | توره تخته |
| | **۳- د تفریق ښودل چې ۱۰ پکښې بلې خواته اختیاری** | |
| - د مساوات ۱۳-۵ = د پاره د ټکو جوړول او مساوات ۱۳ - ۵ = په تخته لیکل (۲)، | - پته لګول چې دوه د مساوات ۱۳ - ۳ = ۱۰ یو برخه حاصلې شی، معلومول چې دوه مساوات ۱۰ - ۲ = ۸ کولې شی. | توره تخته |
| - مرسته کول، که ضرور وو تشریح کول یې. | - دا قدمونه په سلسله سره دیو د بل لاندې لیکل (۲)، | |
| - د بل مثال ترتیبول مثلاً ۱۲ - ۶ د مخکښې په شان، مدد کول. | - بحث کول، په قدمونو کښې ددې مساوات حلول، په زبانی طور او په توره تخته | |
| - دوهمې مشق پاڼې ته دکتلو غوښتنه، غونډ نیول، اصلاح کول. | - په کار ځان پوهول، دغه دوه مساوات په قدمونو کښې مکملول، څه چې ښیني شوي دي د مخې وئیل. | مشق پاڼه را-۴۶-۲ |

| درسی پلان نمبر: ر ۱-۴۶ | |
|---|---|

د دې درسي پلان په باب ځینې لنډې تبصرې ،

۱، تکی به په داسې ترتیب جوړیږي لکه څنګه چې په مشق پاڼه (ر ۱-۴۶-۱) کښې ښودل شوي دي : د لسو تکو یو مکمل قطار په لاندېنی قطار کښې ، یو بل نامکمل قطار ( د ۱-۹ پورې ) په پاسنی قطار کښې . د پاسنی قطار تکی به داسې جوړ شوي وي چې هر یو تکی ئې د لاندېنی قطار د یو یو تکی د پاسه راشي . مثلاً :

........

..........

۲، په دې مشق او دد تې په شان په راتلونکو مشقونو کښې به تفریق چې د ۱۰ اړول پکښې وي په مرحله شان طریقه سره کیږي او د مرحلې قدمونو ته به کار اخیستل کیږي . مثلاً :

۱۳ - ۵

۱۳ - ۳ = ۱۰

۱۰ - ۲ = ۸

| ۱۳ - ۵ = ۸ |
|---|

د تخت په وخت کښې به مسارات مرحله شان لیکلی کیږي او طالب علمان به رهنمائي کیږي چې مرحلې خبرې پرې وکړي کله چې په قدمونو کښې عددي قصه وئیل کیږي .

| 1_46 | ۱/ |
|---|---|
| ۱-۴۶ | ۱ر |

| | |
|---|---|
| ۹ - ۵ = □ | ۷ - ۴ = □ |
| ۱۹ - ۵ = □ | ۱۷ - ۴ = □ |
| ۸ - ٦ = □ | ٦ - ۳ = □ |
| ۱۸ - ٦ = □ | ۱٦ - ۳ = □ |

| 2_46 | 1/ |
|---|---|
| ۲-۴٦ | ۱ر |

۱۷ - ۸
۱۷ - □ = ۱۰
۱۰ - □ = □
۱۷ - ۸ = □

۱۵ - ٦
۱۵ - □ = ۱۰
۱۰ - □ = □
۱۵ - ٦ = □

۱۴ - ۹
۱۴ - □ = ۱۰
۱۰ - □ = □
۱۴ - ۹ = □

د بل درسي پلان د ښوونکو لپاره منګښتي د ورپېښ درسونو شاکې

| درسي مهارتونه | د شاګردانو / استاد مشغلې |
| --- | --- |
| | عنوان: د څنګه تفریق مشق کړو چې ۱۰ پکښې اړول کیږي |
| توره تخته | ۱- په توره تخته دا سناد لیکل: ۱۲ - ۵ = ☐. د طالب علمانو نه غوښتنه کول چې دا مساوات د ځنیتي شیزونو یا د ټکو د استعمال نه په غیر حل کړي. |
| توره تخته | ۲- د ې جوابونه را ټولول په غیر د دې نه چې د صحیح او غلط خیال ئې وساتلي شي. بلنه ورکول چې جوابونه په توره تخته د ټکو د جوړولو / چرخه کولو په واسطه چک کړي. ( صحیح حل: ⊗⊗⊗⊗⊗⊗⊗······· ) د طالب علمانو د حلونو بیانول / صحیح او غلط ئې معلومول. |
| | ۳- په نمره ۲ - بیا ۳ - مثالونو سره جاري ساتل، د ډلګښي په شان عمل کول ( اول ئې په یاد وحسابول، بیا ئې د جوړولو په ذریعه چک کول، بیا جواب په الفاظو کښې په زباني طور ویل ). |
| مشق پاڼه ر ۱-۴۶-۳ | ۴- دریمې مشق پاڼې نه کتل. د ډلګښې په شان کار ورکول: د هر یو طالب علم اول ځانله په یاد وحسابول او بیا نتیجې په ټکو د چرخه را ښکلو په ذریعه چک کول. روسته بیا د نتایجو لوستل د شاګردانو له خوا، مقابله کول، چک کول، تشریح کول. |

اول ټولګی درسي پاڼه ۴۶ - ۱

| 3_46 | 1ر |
| --- | --- |
| ۳-۴۶ | ۱ر |

| | |
| --- | --- |
| ۱۵ - ۸ = ☐<br>⊗⊗⊗⊗⊗<br>⊗⊗⊗OOOOOOO | ۱۳ - ٦ = ☐<br>OOO<br>OOOOOOOOOO |
| ۱۴ - ۹ = ☐<br>OOOO<br>OOOOOOOOOO | ۱۱ - ۷ = ☐<br>O<br>OOOOOOOOOO |
| ۱۲ - ۷ = ☐<br>OO<br>OOOOOOOOOO | ۱٦ - ۸ = ☐<br>OOOOOO<br>OOOOOOOOOO |

عنوان : د ۰-۲۰ پورې په سلسله کښې د تفریق مشق کول ، د ۱۰ په اړوند سره او د هغې نه په غیر

| | د شاګردانو / استاد مشغلې |
|---|---|
| تورہ تخته | ۱- د ذهنی ودې د پاره د استاد کار ورکول . اول ساده تفریق چې د "۱۰" اړول پکښې نه وی بیا ددې نه سخت تفریق . روسته بیا د دواړو قسمونو تفریقونو سره کار وړ ول . که ضرورت وی نو د چیک کولو او تشریح کولو د پاره توره تخته استعمالول . |
| مشق پاڼه را-۴۶-۴ | ۲- څلورمې مشق پاڼې نه په غور کتل ، په کارشان پوهول . دې قسم مشقونو ته د پاس په شان د ذهنی ودې د پاره تعلق ورکول . په پاسنئ برخه باندې کار کول ، اول د ننا ئجو متابله کول ، په لاندینئ برخه کښې د مساوات حلول . د استاد ګرځیدل په شاګردانو کښې ، مرسته کول ، تبصره کول ، نوړې ننیجې لرستل . |
| | ۳- د کارکتابونه د ټولګیوالو سره تبادله کول . د هر یوه د مشق پاڼې را-۴۶-۱ د آخری برخې کار چیک کول ، بحث کول ، که ضرورت وی نو اصلاح کول . |



| 4_46 | ۱ر |
|---|---|
| ۴-۴۶ | را |

| | | |
|---|---|---|
| ۶ - ۴ = ☐ | ۷ - ۴ = ☐ | ۵ - ۵ = ☐ |
| ۱۶ - ۴ = ☐ | ۱۷ - ۴ = ☐ | ۱۵ - ۵ = ☐ |
| ۸ - ۷ = ☐ | ۹ - ۳ = ☐ | ۳ - ۲ = ☐ |
| ۱۸ - ۷ = ☐ | ۱۹ - ۳ = ☐ | ۱۳ - ۲ = ☐ |
| ۱۶ - ۷ = ☐ | ۱۳ - ۹ = ☐ | ۱۲ - ۶ = ☐ |
| ۱۵ - ۹ = ☐ | ۱۶ - ۸ = ☐ | ۱۵ - ۸ = ☐ |
| ۱۳ - ۵ = ☐ | ۱۲ - ۸ = ☐ | ۱۳ - ۷ = ☐ |
| ۱۸ - ۹ = ☐ | ۱۷ - ۹ = ☐ | ۱۷ - ۸ = ☐ |
| ۱۲ - ۷ = ☐ | ۱۵ - ۶ = ☐ | ۱۶ - ۹ = ☐ |

| درسي پلان نمبر: ر ا- ۲۳ | |
|---|---|

د دې درسي پلان په باب خپلې نورې تبصرې :

(۱) استاد به دا خبره تشریح کوي چې کله زه کوم یو شمېر ووایم نو هم هغومره شاګردان به ودرېږي.

(۲) د هر مشق نه روسته به نهه واړه شاګردان بیا کښېني. ماشومان به په خپله فیصله کوي چې څوک ودرېږي. استاد به مداخله نه کوي.

(۳) شاګردان چې کله مشق پاته مکمل کړي نو په دغه وخت کښې به استاد په شاګردانو ګرځي، د هغو شاګردانو سره به مرسته کوي چې ورته ضرورت لري او د نورو کار به چک کوي.






ریاضي
اول ټولګی
ل ۱ - ۴۷

عنوان، د ۰ - ۲۰ پورې په سلسله کښې د تفریقونو مکملول؛ د هغو عددونو لټول چې په ړومبی پوزیشن (مقام) کښې وي.

| د استاد مشغلې | د شاګردانو مشغلې | درسي معاونات |
|---|---|---|
| | ۱- په یو صورت حال ځان پوهول؛ مشغله<br>مساوات په الناظر کښې وئیل | |
| - ړومبی مشق پاڼې ته د کتلو غوښتنه کول. د دې تصویر د صورت حال بیانول؛ پوښتنه کول چې په سوزوکی کښې څو کسان دي؟ (۱)<br>دا بکس □، په توره تخته جوړول. | - غوږ نیول، په صورت حال ځان پوهول، بیانول: "موږ نه پوهیږو/ موږ ته نه ویل چې په سوزکه څومره کسان دي." | مشق پاڼه ل-۴۷-۱<br>توره تخته |
| - د ګلثې حوا تصویر ته د کتلو غوښتنه کول، پوښتنه کول: "څه پیښ شوي دي؟" بحث کول، صحیح فیصله تکرارول؛ په توره تخته لیکل:<br>□ - ۳ = ۲ . | - بیانول: سوزوکی ودریدلې ده. موږ وینو چې ۳ کسان ترې کوز شوي دي او ۲ کسان پکښې لاتر اوسه پاتې دي. | توره تخته |
| - ړومبی تصویر ته بیا توجه راګرځول؛ پوښتنه کول: "په اول کښې په سوزکه کښې څو کسان ناست وو." | - بحث کول، په مساوات کښې د دغو دوو عددونو سره تړل / ترکیبول □ - ۳ = ۲ | |
| - د مکمل مساوات ۵ - ۲ = ۲ لیکل په توره تخته | - د جواب موندل، په الناظر کښې راوړل، بیا یې تشریح کول چې څه پیښ شوي دي. | توره تخته |
| | ۲- په یو بل مشابه صورت حال کښې د مشق تکرارول | |
| - د عملي مشقونو د پاره دیر بکس استعمالول چې کانړي پکښې وي (۲).<br>همدغه شان نور کارونه ورکول لکه:<br>□ - ۳ = ۲ مثلاً □ - ۴ = ۳<br>□ - ۲ = ۷<br>□ - ٦ = ۲ | - مشاهده کول؛ په کارځان پوهول؛ په قدمونو کښې د حل موندل، عملي طور په کانړو سره د کارکولو په ذریعه. مکمل مساوات په توره تخته لیکل. | بکس، کانړي (یاداښت: نور څیزونه)<br>توره تخته |
| | ۳- د مشق تکرارول، صورت حال په تصور کښې راوستل | |
| - دویمې مشق پاڼې ته د کتلو غوښتنه کول. | - اول کارته کتل، د سوزکې د قیصې وئیل. | مشق پاڼه ل-۴۷-۲ |
| - د ړومبو درېو مساواتو په حل کولو کښې مدد کول. تبصره کول. | - ړومبی درې کارونه (مساوات) په ګډه حلول. | |
| - د نورو مساواتو د حل کولو غوښتنه کول، په شاګردانو کښې ګرځېدل، مرسته کول. د یو تن نه د سوزکې د قیصې پوښتنه کول. | - د ټولو مساواتو په مکملولو سره په ځانله ځانله کارجاري ساتل. | |
| - ټول ټولګي ته د نتایجو د لوستلو غوښتنه کول. | - د هر یو طالب علم د خپلو نتیجو لوستل ټول ټولګي ته. د نورو غوږ نیول او مقابله کول. | |

د دې درسي پلان په باب ځینې تبصرې:

(۱) په دې تصویر کښې سورکۍ روانه ده. ښانه دروازه یې بنده ده. مونږ ته پته نه لګیږي چې څومره کسان پکښې ناست دي. عمداً څه سورکۍ ودرېدله، درې کسان ترېنه راکوز شول، څو ورو کسان پکښې لا اوس هم ناست پاتې شول.
د امورت حال د دې د پاره استعمالیږي چې دغه مساوات په عمل کښې وښئي په کوم کښې چې اول عدد معلوم نه وي: □ - ۳ = ۲. د استاد به دې خبرې ته فکر وي چې داد تشریح پر مساوات دغه. خو د غیب عدد د پیدا کولو د پاره په کار ده چې دغه دوه ورکړه شوي عددونه سره جمع کړه شي. په دې مرحله کښې به طالب علمان دا قسم غیر مکمل مساوات د عملي صورت حال په ذریعه حلوي (یا دیرد غسې مشابه صورت حال په ذریعه). زیاتي تشریحات به نه ورکول کیږي.

(۲) استاد به بکس او کارتې د سورکۍ او د سورلیو (مسافرو) سره مقابله کړي. د عملي صورت حالونو د ښودلو د پاره د تخیلي مشق پانړې په شان بکس ډیر فائده مند ده.
استاد به داسې بکس (د کښې خالي بکس او داسې نور) استعمالوي چې لاندې خوا ته خلا صیږي او دا ځکه چې شاګردانو ته پته ونه لګیږي چې د بکس د لاندې مېز باندې څومره کارتې پټې پرانه دي.
(که چیرې داسې بکس نه پیدا کیږي نو استاد یوه کیږه یا د سکول یوه تړلې د شکوره پتولو د پاره استعمالولی شي.)




| | | | |
|---|---|---|---|
| ۸ - ۷ - □ | ۱ - ۳ - □ | ۵ - ۵ - □ | ۹ - ۵ - □ |
| ۵ = ۱۰ - □ | ۶ = ۶ - □ | ۵ = ۹ - □ | ۴ = ۸ - □ |
| ۹ = ۴ - □ | ۹ = ۸ - □ | ۶ = ۷ - □ | ۱۴ = ۴ - □ |

ر ا | ۲ - ۴۷ ; ر ا | ۱ - ۴۷

# د بل درسي پلان د ښوونکو منګښي د ورپسې درس ترڅنګ

| | |
|---|---|
| عنوان : د تفریق په صفت مساوات مشق کول چې اول عدد ئې غیب وي | |
| درسي معاونات | د شاګردانو / استاد مشغلې |
| | ۱- ذهني تربیه : د ۰-۱۰ او ۱۰-۲۰ پورې سلسلو کښې جمع کول او تفریق کول د ۱۰ د اړونې نه په غیر. |
| تورہ تخته | ۲- د استاد د تېر درس ورپه زړه کول شاګردانو ته. د سوزکي د قصې د وشیلو د پاره د شاګردانو لارښودنه کول کرمه چې په مساوات □ - ۳ = ۲ پورې تعلق نیسي. په توره تخته د نتا ځو لیکل د شاګردانو له خوا. |
| مشق پاڼه را-۴۷-۳ | ۳- درېیمه مشق پاڼه مطالعه کول، په مثال باندې کار کول، د نتیجو په لوړ بکس کښې خپله محاسبه د حاصل عددونو په چرخۍ کولو سره ورپه زړه کول. په آخر کښې د نتیجو لوستل / مقابله کول ئې. |

اول صنف درس درسي ۱-۴۷

| ر۱ | 3-47 |
|---|---|
| ر۱ | ۳-۴۷ |

| | | |
|---|---|---|
| □ − ۵ = ۱۱ | □ − ۳ = ۶ | ۱۱ − ۷ = ۴ |
| □ − ۴ = ۱۴ | □ − ۶ = ۱۱ | □ − ۸ = ۸ |
| □ − ۹ = ۳ | □ − ۴ = ۱ | □ − ۸ = ۷ |

۱۸ ۱۶ ۵

۹ ۱۲ ۱۵ ۱۶ ۱۷

عنوان : د تمرینونو په مرسته مساوات مشق کول چې دویم عدد یې غیب وي

| | د شاګردانو / استاد مشغلې |
|---|---|
| ۲۰ شیزونه<br><br>تورو تخته | ۱- د استاد یو بکس راخیستل چې شه شیزونه پکښې وي او شمېر یې چې د ترلکی تور شاګردان یې ویني ( د شیزونو شمېر به د ۱۰ او ۲۰ په منځ کېښې وي ) مثلاً ۱۲ شیزونه ، ۱۲ په توره تخته لیکل . |
| | ۲- د یو طالب علم نه غوښتل چې یو څه شیزونه ترینه واخلي خو پاتنه به یې نه ښئ چې شومره دي . په توره تخته ۱۲ − □ لیکل . |
| توره تخته | ۳- د یو بل طالب علم نه غوښتنه کول چې په بکس کښې پاتې شوي شیزونه وشمېري او شمېر یې مثلاً ۸ - ترلکی ته ووائي . په تخته لیکل :<br>۸ = □ − ۱۲ |
| | ۴- پوښتنه کول چې شومره شیزونه د بکس نه اخیستل شوي وو . جواب ورکول چې ۴ . او بیا د خپل جواب چک کول د هغه طالب علم سره چې شیزونه ئې د بکس نه راخیستي دي . عددي قصه وئیل مکمل مساوات لیکل : ۱۲ - [۴] = ۸ |
| | ۵- په مختلفو عددونو او مختلفو شاګردانو سره د دغه مشق څو ځله تکرارول . |
| مشق پاڼه ر۱-۴۷-۴ | ۶- په دویم پوزیشن کښې د بکسونو په کولو سره د ټولو مې مشق پاڼې مکملول . د نتیجو د موندلو نه روسته د تجربې بکس کښې په عددونو چرخه کول . |

| 4-47 | ر۱ |
|---|---|
| ۴-۴۷ | ر۱ |

| | | |
|---|---|---|
| ۸ = □ − ۱۳ | ۸ = □ − ۱۵ | ۹ = □ − ۱۹ |
| ۹ = □ − ۱۴ | ۸ = □ − ۱۷ | ۶ = □ − ۱۳ |
| ۹ = □ − ۱۶ | ۱۱ = □ − ۱۱ | ۱۴ = □ − ۲۰ |

۹ ۴ ۷ ۷ ۵ ۷ ۶ ۱۰

ریاضي
اول ټولګی
ر ۱ - ۴۸

## عنوان، د ۰ - ۲۰ پورې په سلسله کښې اوونتي (ریورس) عملیې

| د استاد مشغولي | د شاګردانو مشغولي | درسي معاونات |
|---|---|---|
| | **۱- اوونتي عددي قیصې مونډل (۱)** | |
| - پنځه طالب علمان مخې ته را بلل، بیا ۶ نورهم ته راغوښتل چې د دغه پنځو نورو سره یو ځای شي.<br>- د عددي قیصې د ویلو غوښتنه کول. | - مشاهده کول.<br>- عددي قیصه ویل: "په اول کښې پنځه طالب علمان مخې ته را غلل، بیا وروسته شپږ نور مخې ته را غلل، په آخر کښې ټول ۱۱ کسان شول." | |
| - د مساوات د لیکلو غوښتنه کول. | - ۵ + ۶ = ۱۱ په توره تخته لیکل. | توره تخته |
| - مخې ته ولاړ ګروپ کښې شپږو طالب علمانو ته ویل چې د ګروپ نه لرې شئ. (۲) | - د شپږو طالب علمانو لرې کېدل، د پنځو تنو مخې ته پاتې کېدل، د نورو مشاهده کول. | |
| - د دې عددي قیصې د ویلو غوښتنه کول. | - د دغه عددي قیصې ویل. | |
| - په توره تخته د دې مساوات د لیکلو غوښتنه کول. | - د مساوات ۱۱ - ۶ = ۵ لیکل د څنګښې مساوات. په څنګ کښې د یو شاګرد له خوا. | توره تخته |
| - غوښتنه کول چې د واړو عددي قیصې د یو ځای ووېلې شي. | - د دواړو عددي قیصو ویل، د مساوات متعلقه برخې ته اشاره کول "...... او په آخر کښې پنځه طالب علمان ولاړ پاتې شول لکه څومره چې مخکښې وو." | |
| - د همدغو دوه عددي قیصو تکرار کول، هر طالب علمان به لوی وی کوم چې به مخې ته راځي او عمل به کوي. | - شاګردان دې مطلب ته رسېږي چې عددي قیصه بالکل د مخکښې په شان نتیجه ورکوي (۳) | |
| | **۲- مشق** | |
| - ۷ + ۸ = ۱۵ په توره تخته لیکل؛ غوښتنه کول چې د خپلو مساواتو مطابق عمل وکړئ. | - د دې مساوات عملي کول (اول ۷ طالب علمان مخې ته ولاړ وو بیا اته ورسره نور یو ځای شول). | توره تخته |
| - غوښتنه کول چې داسې عمل وکړئ چې په آخر کښې هغه شمېر طالب علمان پاتې شي څومره چې مخکښې وو. | - بحث کول، فیصله کول چې څومره او کوم طالب علمان بېرته لاړ شي چې ۷ تنه مخې ته ولاړ پاتې شي (مثلاً اته طالب علمان چې بېرته لاړ شي.) | |
| - د بل مساوات غوښتنه کول. | - ۱۵ - ۷ = ۸ په توره تخته لیکل. | توره تخته |
| | **۳- د دواړو مساواتو پیدا کول** | |
| - غوښتنه کول چې لکه د مخکښې په شان همدغه لړه دې په ۹ او ۶ طالب علمانو وشي. | - عمل کول. | |
| - غوښتنه کول چې په غږ او خاموشۍ سره وکړئ چې اوس به څه پېښېږي. | - غوږ نیول، په کارشان پوهېدل. | |
| - په خاموشۍ سره ۹ طالب علمان مخې ته لېږل، یوه شېبه انتظار کول؛ بیا په خاموشۍ سره د ۶ نورو ورسره یو ځای کېدل، بېرته یې خپلو ځایونو ته لېږل.<br>- د دواړو مساواتو په باب پوښتنه کول. | - مشاهده کول، اصلاح کول په غیرد خبرو کولو یا پوښتنې کولو نه.<br>- بحث کول، د مساواتو مونډل ۹ + ۶ = ۱۵، ۱۵ - ۶ = ۹ په تخته لیکل. | |
| | **۴- په اوونتو عملیو کښې تحریري مشق** | |
| - د یو مېچه مشق پاڼې د مطالعه کولو غوښتنه کول.<br>- د مشق پاڼې د مکملولو غوښتنه په جوړه جوړه کښې، د ټولګي په مخکښې د طالب علمانو د عمل کولو په شان د رښتیا د پاره د کاونټرز استعمالول. | - د مشق پاڼې مطالعه کول، د مشق پاڼې په سر کښې د مثال عددي قیصې ویل په کارشان پوهېدل.<br>- د مشق پاڼې ډکول، کاونټرز استعمالول. | مشق پاڼه ر ۱ - ۴۸ - ۱<br>کاونټرز |

| درسي پلان نمبر: ر۱-۴۸ |
|---|

د دې درسي پلان په باب څه نورې تبصرې :

(۱) په دې درسي پلان کښې د ”اوړښتې عملیې“ اصطلاح استعمال شوې ده خو استاد به د دې ذکر په ټولګي کښې نه کوي. ماشومان په دې اصطلاح باندې پوهېدلو ته ضرورت نه لري؛ دوی صرف په دې پوهول کېږي چې د دې نه مطلب څه دے. کله چې استاد ته دا پته ولګي چې شاګردان لا اوس هم په دې تصور نه دي پوهه شوي نو د درس پروګرام دننه د مختلفو عددونو او مختلفو شاګردانو په استعمالولو سره بیا تکرارولے شي.

(۲) د ریاضۍ په لحاظ کوم فرق نه پرېوځي که همغه شپږ طالب علمان یا د شپږو طالب علمانو بل ترکیب بېرته لاړ شي. ځکه چې نتیجه همغه یو شان وي: ۱۱ - ۶ = ۵؛ که طالب علمانو کښې څوک هم د دې عددونو نمایندګي وکړي. د دې وجې نه دا ضروري نه ده چې همغه طالب علمان بېرته لاړ شي کوم چې مخې ته راغلي وو او د نورو سره یو ځای شوي وو. استاد هغه طالب علمانو ته ویلے شي څوک چې بېرته خپل ځایونو ته تلل غواړي.

(۳) په اول کښې -۵- طالب علمان وو، بیا -۶- ورسره نور یو ځای شول، اوس -۱۱- طالب علمان شول. د دې -۱۱- شاګردانو نه -۶- لاړل، په آخر کښې بیا -۵- طالب علمان پاتې شول.

| ر۱ | ۴۸-۱ |
|---|---|
| ر۱ | ۴۸-۱ |

| | |
|---|---|
| ۷ + ۵ = [۱۲] | ۱۲ - [۵] = ۷ |
| ۶ + ۸ = [ ] | [ ] - [ ] = ۶ |
| ۴ + ۹ = [ ] | [ ] - [ ] = ۴ |
| ۵ + ۸ = [ ] | [ ] - [ ] = ۵ |
| ۸ + [ ] = [ ] | ۱۵ - [ ] = ۸ |
| [ ] + [ ] = [ ] | ۱۹ - ۱۰ = ۹ |

# د بل درسي پلان د ښودلو نه منګښي د ورپسي درس نزخاکې

عنوان: د ۰-۲۰ پورې په سلسله کښې په اوښتو (ریورس) عملیو کښې نور مشق

اول ځل درس ورځی ر-۴۸

| دشاګردانو / استاد مشغلې | درسي معاونات |
|---|---|
| ۱- دویشمې مشق پاڼې ته په غور کتل. د مساواتو د مکملولو د پاره د خالي بکسونو د ډکولو غږښتنه کول.<br>په مثالونو: ۸ + □ = ۱۳  ۱۳ - ۵ = □ بحث کول.<br>اوهم د دوئ په منځ کښې په تعلقاتو خبرې اترې کول. | مشق پاڼو ر۱-۴۸-۲ |
| ۲- د دغو دوو اوښتو (ریورس) عملیو منځ کښې د کرښو د رابنکلو په ذریعه دویشمه مشق پاڼه مکملول (مثال وګورئ). | |
| ۳- د ځکینئ مشق پاڼې په طریقه (طرزالعمل) دریمه مشق پاڼه مکملول:<br>الف: خالي ځایونه ډکول.<br>ب: د دوو اوښتو (ریورس) عملیو په منځ کښې د کرښو رابنکل. | مشق پاڼو ر۱-۴۸-۳ |

| ر۱ | 2-48 |
|---|---|
| ر۱ | ۲-۴۸ |

| | |
|---|---|
| ۸ + □ = ۱۳ | ۱۱ − ۹ = □ |
| ۱۰ + □ = ۲۰ | ۱۳ − ۵ = □ |
| ۲ + □ = ۱۱ | ۲۰ − ۱۰ = □ |
| ۱۱ + □ = ۱۹ | ۱۷ − ۸ = □ |
| ۶ + □ = ۱۲ | ۱۲ − ۶ = □ |
| ۹ + □ = ۱۷ | ۱۹ − ۸ = □ |

| ر۱ | 3-48 |
|---|---|
| ر۱ | ۲-۴۸ |

| | |
|---|---|
| ۱۵ − ۸ = □ | ۵ + □ = ۱۲ |
| ۸ + □ = ۱۷ | □ − ۹ = ۵ |
| ۱۲ − □ = ۵ | □ − ۹ = ۸ |
| □ + ۹ = ۱۴ | □ + ۸ = ۱۵ |
| □ − ۴ = ۹ | ۱۳ − □ = ۷ |
| ۷ + ۶ = □ | ۹ + □ = ۱۳ |

عنوان: په ځنو مساواتو کارکول چې نتایج (حاصل) ئې یو شي وي

| د شاگردانو / استاد مشغلې | |
|---|---|
| ۱ـ ذهني تربیه: د ۰-۲۰ پورې په سلسله کښې قسم قسم جمع او تفریقونه د ۱۰ د انتقال سره او په غیر د ۱۰ د انتقال نه.<br><br>۲ـ د استاد د دوو بکسونو جوړول چې دوه حاصلونه ولري مثلاً ۱۵ او ۹.<br>څلور بیضوي جوړول چې څلور کارونه ولري او ۱۵ او ۹ ئې حاصلونه وي.<br>(مثلاً ۱۶-۷، ۸ + ۷، ۵ + ۴، ۱۸-۳) د طالبو علمانو سره یوځای یوځای کوونکي کرښې د کارونو او اړوند نتائجو په منځ کښې رابنکل.<br><br>۳ـ څلورمه مشق پاڼه مطالعه کول او پیدا کول چې د ټولو کارونو حلونه په لویو بکسونو کښې دي. مثال ددې د پاره استعمال شوے دے چې د بیضوي نه هغه بکسونو ته چې صحیح حل ولري د کرښې د رابنکلو چل وښئي.<br><br>۴ـ د مشق پاڼې مکملول. مقابله کول، جوړه جوړه بحث کول، چیک کول.<br><br>د استاد د پاره یاداشت: هر حل ته به څلور کرښې تللې وي، دوه کرښې د جمع او دوه کرښې د تفریقونو. | مشق پاڼه را-۴۸-۴ |





عنوان: د ۱-۲۰ پورې عددونه د لسیز نظام مطابق په یو جدول (تهیل) کښې ترتیبول (۱)

| د استاد مشغله | د شاګردانو مشغله | درسي معاونات |
|---|---|---|
| | **۱- د ۱-۱۰ پورې عددونه ترتیبول** | |
| - یوه ساده دایره په تورو تخته ویستل او د ۱-۱۰ پورې عددونه په منځ کښې لیکل. عددونه به خوارۀ وارۀ (ګډوډ) وی.<br>- لاندې ترینه یو چرکات جوړول چې لس بکسونه ولری؛ پوښتنه کول چې دا دځۀ د پاره استعمالیږي شی.<br>- د بیلو بیلو طالب علمانو نه همیشه پوښتنه کول چې یو عدد په خاص ترتیب سره ولیکی او په دایره کښې په دې عدد باندې چرخه راکاږی. په اول مثال کښې مرسته کول. | - مشاهده کول، ویئیل چې ۱-۱۰ پورې عددونه خوارۀ وارۀ (ګډوډ) دی.<br>- مشاهده کول، بحث کول، تجزیه نیول چې سرېږه په دې بکسونو کښې په یو منظمه طریقه عددونه لیکل شی.<br>- یو په بل پسې د لسو طالب علمانو مخې ته راتلل، د هدایت سره سم عمل کول، د نورو مشاهده کول، په اوچت آواز د عددونو لوستل | توره تخته |
| | **۲- د ۱-۲۰ پورې عددونه په مناسب ډول ترتیبول** | |
| - د مشق پاڼې ر ۱-۴۹-۱ د مطالعې او د سرد قطار د ډکولو غوښتنه کول. مدد کول، چیک کول.<br>- د منځنۍ غوښتنه کول کوم چې په دویم قطار او دویمه دایره کښې کول په کار دی؛ د بحث لارښوونه کول.<br>- غوښتنه کول چې په صحیح ترتیب دې په دویم قطار کښې عددونه ولیکلې شی او هغه لیکلې شوی عددونه دې په دایره کښې چرخه کړې شی. | - مشق پاڼه مطالعه کول، د ۱-۱۰ پورې عددونه پکښې لیکل، په دایره کښې په متعلقه عددونو چرخې رابنکل.<br>- بحث کول، د دویمې دایرې نه په دویم قطار کښې د ۱۱-۲۰ پورې عددونو د لیکلو تجویز نیول.<br>- د بیل بیل طالب علم د ۱۱-۲۰ پورې عددونه لیکل، په دایره کښې چرخه پرې رابنکل، د یو اندی وال سره چیک کول، په اوچت آواز د عددونو لوستل. | مشق پاڼه ر ۱-۴۹-۱ |
| | **۳- په دواړو قطارونو کښې دا عددا دو ځایونو ته رابطه ورکول** | |
| - د کار د کتابونو د بندولو غوښتنه کول.<br>- داولنی قطار دلاندې د بکسونو پر دویم قطار جوړول.<br>- په آخری قطار کښې دلاندې بکس د پاره د صحیح عدد د پیدا کولو غوښتنه کول په داسې حال کښې چې منځنه په سر قطار کښې یو عدد ته اشاره کوی؛ (۲) د ضرورت په اندازه مدد کول.<br>- د غیبر عددونو په باب پوښتنه کول او غوښتنه کول چې په خاص ځایونو کښې دې ولیکلې شی. | - د کار کتابونه بندول.<br>- مشاهده کول.<br>- کوم عدد ته چې اشاره وشوه د هغې لوستل، د آخرینی قطار د پاره د متعلقه عدد د پیدا کولو کوشش کول، نوم یې اخیستل، بیل بیل طالب علم یې لیکی.<br>- د بیل بیل طالب علمانو یو عدد ویئیل، مخې ته راتلل، په یو بکس کښې یې لیکل، د نورو مشاهده کول، تبصره کول، اصلاح کول. | توره تخته |
| | **۴- په یو جدول (تهیل) کښې د عددونو د صحیح ځای د پیدا کولو مشق کول** | |
| - د ۱-۱۰ پورې د جدول ورانول (ړنګول)؛ د دې تهیل (جدول) یوه برخه په تورو تخته جوړول. [۵] پوښتنه کول چې په لاندې بکس کښې د کوم عدد لیکل په کار دی.<br>- په نورو عددونو سره مشق تکرارول مثلاً [۹] ؛ [۱۳]<br>- د دویمې مشق پاڼې د پاسنۍ برخې د تکمیلولو غوښتنه کول.<br>- د نتیجو د لوستلو غوښتنه کول.<br>- د نتیجو د تشریح کولو غوښتنه کول، د خبرو لارښوونه کول.<br>- د مشق پاڼې د پاتې کار د حلولو غوښتنه کول، د ضرورت په اندازه مرسته کول. | - بحث کول، په مشق پاڼه کښې جدول (تهیل)، ته د کتلو نه په غیر د صحیح جواب پیدا کول؛ د یو طالب علم د صحیح جواب ۱۵، په تورو تخته لیکل.<br>- د هغې په شان د صحیح عددونو پیدا کول او لیکل.<br>- په مثال باندې ځان پوهول، په خاموشه سره کار کول: صحیح عددونه لیکل.<br>- د بیل بیل طالب علم د نتیجو لوستل، د نورو مقابله کول.<br>- داسې بیانونه پیدا کول لکه: د ۲۰، د لاندې ۱۲، په کار دی، په لاندینی قطار کښې همیشه ۱۰ ... زیات د پاسنی قطارونه، او د دې برعکس، ځانله ځانله د عددونو لیکل. ... ملګری وال سره مقابله کول، ټول ټولګی ته د نتایجو لوستل. | توره تخته<br>مشق پاڼه ر ۱-۴۹-۲ |

| درسی پلان نمبر: ر۱-۴۹ | |
|---|---|

د دې درسي پلان په باب څه نورې تبصرې ؛

(۱) تاسبق د لسیز نظام د تیارولو او په څنګه باندې د پوهېدلو د پاره یو بل قدم دی. استاد به په دې اراده بنده پره وی، څو په دې سبق کښې به نه د لسیز نظام تشریح کړی او نه به د لسیز، لسیز نظام او داسې نورو اصطلاحات استعمالوی.

(۲)

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱۰ | | ۸ | | | | | ۳ | ۲ | ۱ |
| | | | | | | | | | |

استاد به د طالب علمانو دا کېږنه کوی چې د شمېرلو نه پغیر عدد پیدا کړی یعنې طالب علمان به پاسنی عدد ته ګوری او د څنګه نه به صحیح نتیجه اخلی.

مثلاً د پاسنی قطار په بکس کښې عدد ۸ دی. د همدغه بکس د لاندې بکس کښې عدد ۱۸ وی ...... د ۲ د لاندې به ۱۲ وی او داسې نور. په دې ځای کښې د دې استاد توقع نه کوی چې ټول طالب علمان به په دې تصور پوهه وی. له دې وجهې نه دې استاد خپل طالبعلمان دې ته نه مجبوروی چې یوه قاعده په کار واچوی او دا تصور په الفاظو یا عبارت کښې راوړی. څو صفحه به صحیح جواب قبلوی چې په هره طریقه ئې پیدا کړی وی.

| ر۲ | ۱-۴۹ |
|---|---|
| ر۱ | ۱-۴۹ |

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | | | | | | | | | ۱ |
| | | | | | | | | | |

۳ ۱ ۵ ۹ ۱۰ ۶ ۴ ۷ ۲ ۸

۱۸ ۲۰ ۱۱ ۱۳ ۱۷ ۱۵ ۱۹ ۱۴ ۱۶ ۱۲

| ر۱ | ۲-۴۹ |
|---|---|
| ر۲ | ۲-۴۹ |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۵ | ۱۰ | | | ۹ | ۷ | ۳ |
| | | ۱۶ | ۱۲ | | | ۱۳ |

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | | ۲ | | | ۹ | ۴ | ۳ | ۸ | ۷ |
| ۱۶ | | | | ۲۰ | | | | | ۱۷ |

د بل درسي پلان د ښوونځي د وړيې درسونو خاکې

عنوان: د لسو برخو په ماډلونو کار کول

| د شاگردانو / استاد مشغلې | درسي معاونات |
| --- | --- |
| ۱- په توره تخته د دوه ماډلونو (نمونو) ويستل (رسمول) د استاد په ذريعه. هره نمونه به لس لس برخې لري. د ماشومانو نه پوښتنه کول چې کومه نمونه زياتې برخې لري (اول يې قياس کول، بيا يې شمېرل). | توره تخته |
| ۲- مشق پاڼې ر۱-۳۲-۳ ته کتل، خبرې اترې پرې کول، بيا نو يې، د دغه بېلو بېلو برخو د رنګولو په ذريعه ماډلونه رانقل کول (هر ماډل لس برخې لري). | مشق پاڼه ر۱-۳۲-۳ |
| ۳- د ماشومانو نه غوښتل چې د دغه ماډلونو برخې وشمېري کومې چې دوئ جوړې کړې دي. دا به ضرور لس برخې وي. | |
| ۴- د ځينو شاگردانو نه غوښتل چې د مشق پاڼې نه مثالونه تورې تختې ته رانقل کړي (د شاگردانو سره د مثالونو په رسمولو کښې د مدد د پاره استاد په توره تخته مربع کاني وباسي). د چيک (کره) کولو د پاره د نمونو برخې شمېرل. | توره تخته |
| ۵- د ماشومانو نه غوښتل چې په توره تخته يا په سليټونو دوئ خپله نوي ماډلونه (نمونې) وباسي (رسم کړي) هر ماډل به لس برخې لري. | سليټونه |

اول سمستر درسي ورځې ر۱-۳۲-۱



د بل درسي پلان د ښوونکو د لارښود د وړاندې کولو له پاره

| اول ټولګی دري درسي (ر۱-۴۹) | عنوان: د عددونو ۱-۲۰ پورې د تېبل (جدول) سره اشنا کېدل | |
|---|---|---|
| | د شاګردانو / استاد مشغاې | درسي معاونات |
| | ۱- د اول او دويم قطار د عددونو د جدول جوړول په توره تخته د استاد په ذريعه، د ټولو بکسونو خالي پرېښودل.<br>۲- د دوښو (چيستانونو) پوښتنه کول لکه: ۰ د دويم قطار په څلورم مقام (پوزيشن) کښې کوم عدد راځي. عدد پکښې ليکل (مثلاً ۱۴). د دوښو جاري ساتل د طالب علمانو له خوا ان ترهغې چې جدول (تېبل) مکمل شي.<br>۳- داسې بکسونه [۱۶] په توره تخته د ۲۰ د تېبل لاندې يا خوا کښې جوړول د استاد په ذريعه (پړومبۍ يا دويم قدم وګوره). د دې بکسونو ځای پيدا کول د طالب علمانو په ذريعه، په چاک سره د دغه بکسونو په نښه کول. د وه غيب عددونه په بکسونو کښې ليکل (۶، ۱۷).<br>۴- [۹] په توره تخته جوړول د استاد په ذريعه، په تېبل کښې د دې بکسونو د ځای پيدا کول او په نښه کول يې د شاګردانو له طرفه. صحيح عدد ۲۰ پکښې ليکل.<br>۵- په توره تخته د ټولو تسويرونو (رسمونو) وړاندې کول د استاد په ذريعه. پورتنۍ کار ورکول لکه: [۳] د طالب علمانو پرې بحث کول، حلول، (۱۲، ۲) پکښې ليکل.<br>۶- درېمې مشق پاڼې ته په غور کتل، په کارځاى پوهول؛ د دې کارته د دغه مشترکو سره تعلق ورکول چې عکس کښې يې وکړل. د شاګردانو حلول د ټولو کارونو، په خالي بکسونو کښې د ټولو عددونو ليکل. په آخر کښې يې د مشق پاڼې ر۱-۴۹-۱ د عددي تېبل سره مقابله کول. د استاد مدد کول، چک کول، اصلاح کول. | توره تخته<br><br><br><br>توره تخته<br><br><br><br><br><br><br><br>مشق پاڼې ر۱-۴۹-۳ |

| | |
|---|---|
| ر۱ | 3-49 |
| ر۱ | ۳-۴۹ |

۴ ۱۵ | ۱۸ ۱۹ | ۳ | ۱۹ | ۷

۳ ۱۴ | ۵ | ۷ ۹ | ۱۵

عنوان : د لس گونو جمع کول او تفریق کول، د ۱-۲۰ پورې د جدول (تېبل) نه کار اخیستل

| | د شاګردانو / استاد مشغولې | |
|---|---|---|
| [illegible] | ۱- ذهني تربیه : د ۱-۱۰ پورې د کوم یو عدد ورکول د استاد لهٔ طرفه، ور سره د «۱۰» د جمع کولو غوښتنه کول (مثلاً د استاد عدد «۵» وئیل، د طالب علمانو وئیل : ۵ + ۱۰ = ۱۵). | |
| [illegible] | ۲- ذهني تربیه : د ۱۱-۲۰ پورې د کوم یو عدد ورکول د استاد له طرفه، د دغه عدد نه د «۱۰» د تفریق کولو غوښتنه کول (مثلاً د استاد عدد «۱۸» وئیل، د شاګردانو وئیل : ۱۸ - ۱۰ = ۸). | |
| [illegible] | ۳- د استاد پهٔ توره تخته د بکسونه جوړول (رسمول). د طالب علمانو د غیب عددونو پیدا کول، او لیکل مثلاً (۱۵). غوښتنه کول چې د اسې مساوات دې پیدا کړے شي چې «۵» او «۱۵» ولري، د طالب علمانو بحث کول، پهٔ توره تخته د بکسونو پهٔ منځ کښې لیکل : ۵ + ۱۰ = ۱۵، ۱۵ - ۱۰ = ۵ | توره تخته |
| [illegible] | ۴- د طالب علمانو نه غوښتنل چې څلورمې مشق پاڼې ته پهٔ غور وګوري، د طالب علمانو پهٔ کار ځان پوهول. پهٔ ټولو خالي بکسونو کښې د صحیحو عددونو پهٔ لیکلو سره د ورحواله شوو کارونو سرته رسول. د استاد کرځېدل پهٔ طالب علمانو چک کول، د ضرورت پهٔ اندازه مرسته کول، کهٔ چرې د یو شاګرد ان مشکلات لري نو دیو بل کار لیکل پهٔ تخته د استاد له طرفه او د طالب علمانو سره ګډ یو ځای حلول. | مشق پاڼه را-۴۹-۴ |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۴-۴۹ را | ۷ = ☐ - ۱۷ | | ۱۷ = ☐ + ۷ | ۷ / ۱۷ |
| ۴-۴۹ را | | | | |
| | ☐ = ۱۰ - ۱۳ | | ☐ = ☐ + ۳ | ۳ / ☐ |
| | ۹ = ☐ - ☐ | | ☐ = ☐ + ۹ | ۹ / ☐ |
| | ☐ = ☐ - ۱۸ | | ☐ = ☐ + ☐ | ☐ / ۱۸ |
| | ☐ = ☐ - ☐ | | ☐ = ☐ + ☐ | ☐ / ۱۲ |

ریاضي
اول ټولګی
۱ - ۵۰

## عنوان: د ۵۰ پورې د لسیزو بنودل (۱)

| د استاد مشغلې | د شاګردانو مشغلې | درسي معاونات |
|---|---|---|
| | **۱- د ۲۰ پورې عددونو باندې بیا نظر اچول** | |
| - د یو طالب علم نه غوښتل چې مخې ته راشي.<br>- د ټولګی د طالب علمانو نه غوښتنه کول چې د ۱ او ۱۰ په منځ کښې عددونه ووائي او مخې ته ولاړ شاګردان به هماغه هومره ګوتې هر وار ښئي کوم شمېر چې د ټولګی طالب علم ووائي.<br>- د یو عدد غوښتنه کول چې د ۱۰ نه زیات وي لکه عدد ۱۴ او پوښتنه کول چې موږ په دغه شمېر ګوتې څنګه بنودلے شو؟<br>- د یو دویم طالب علم نه خواست کول چې د اولني طالب علم سره یوځای شي.<br>- د ۱۱ او ۲۰ ترمنځه د یو بل عدد د وئیلو غوښتنه کول مثلاً ۱۹، د ګوتو نه کار اخیستل.<br>- د طالب علمانو نه خواست کول چې د ۱۰ تر ۲۰ پورې مختلف عددونه ووائي. | - د یو تن مخې ته راتلل، د نورو مشاهده کول.<br>- عددونه وار په وار وئیل؛ چک کول چې ایا د ګوتو شمېر د دغه د وئیل شوی عدد سره برابر دے او کنه!<br>- غوږ نیول او بحث کول؛ جواب ورکول چې د دې د پاره یو بل طالب علم ته ضرورت دے.<br>- د یو بل طالب علم مخې ته راتلل: د یو تن ۱۰ ګوتې بنودل د بل تن ۴ ګوتې بنودل<br>- ۱۹ ګوتې بنودل: د یو طالب علم ۱۰ ګوتې بنودل، د بل طالب علم ۹ ګوتې بنودل. د نورو شمېرل.<br>- د یو طالب علم همېشه یو عدد وئیل؛ د مخې ته ولاړو دوو شاګردانو صحیح شمېر ګوتې بنودل؛ د نورو مشاهده کول. | |
| | **۲- د عددونو ۳۰، ۴۰، ۵۰ بنودل** | |
| - د یو طالب علم نه د خپلو ټولو ګوتو د ښائیلو غوښتنه کول؛ ۱۰ په توره تخته لیکل [۱۰] د یو دویم طالب علم نه غوښتنه کول چې خپلې ګوتې وښائي. د ۱۰ د عدد لاندې عدد ۲۰ په توره تخته لیکل [۱۰] [۲۰] | - د یو یو طالب علم د هدایت سره سم خپلې ګوتې بنودل؛ د نورو مشاهده کول، د عددونو لوستل. | توره تخته |
| - یو دریم طالب علم مخې ته راتلل، د دریو واړو نه غوښتنه کول چې خپلې ګوتې وښائي. | - د مخې ته ولاړو دریو واړو طالب علمانو خپلې ګوتې بنودل. | |
| - د نوی عدد غوښتنه کول، که طالب علمان نه پوهیږي نو د نوی عدد ورکول، د عدد ۲۰ نه لاندې د عدد ۳۰ په توره تخته لیکل. | - کېدے شي چې ځینې طالب علمان ۳۰ ووائي، د نورو په اوچت آواز د نوی عدد تکرارول. | توره تخته |
| - د یو څلورم طالب علم نه غوښتنه کول چې، بیا د یو پنځم نه چې مخې ته راشي او خپلې ګوتې وښائي. د نوی عدد د وئیلو غوښتنه کول، مرسته کول د نورو عددونو د لاندې د دغه عددونو لیکل په تخته. اول ۴۰ بیا ۵۰ | - د دوو نورو طالب علمانو مخې ته راتلل، د خپلو ګوتو بنودل، د نورو مشاهده کول، شمېرل، د نوی عدد ۴۰ وئیل، بیا د عدد ۵۰، د ټولو عددونو لوستل. | توره تخته |
| | **۳- په نورو عددونو کار کول** | |
| - په توره تخته یو نوی عدد ته اشاره کول، په ټولو عددونو د مشق تکرارول: ۱۰، ۲۰، ۳۰، ۴۰، ۵۰ په غیر د ځه ترتیب نه.<br>- مخې ته ولاړو شاګردانو ته د یو عدد په ورو وئیل چې نور ئې وانه وري مثلاً ۳۰ او غوښتنه کول چې د غه عدد د ګوتو په ذریعه وښئي. په ټولو لسیزو د ۱۰ نه تر ۵۰ پورې همدغسې کول.<br>- څو تنو طالب علمانو نه غوښتنه چې په لسو لسو کښې د ۱۰ تر ۵۰ پورې شمېر وکړي. | - د ټولو په یوه آواز د عدد وئیل، د مخې ته ولاړو شاګردانو د هغې په مطابقت سره د ګوتو بنودل.<br>- د مخې ته ولاړو شاګردانو د عدد بنودل د ګوتو په ذریعه، د نورو د دغه عدد وئیل په یوه آواز.<br>- ځانله ځانله د ۱۰-۵۰ په لسو لسو کښې شمېر کول، مخ په وړاندې، مخ په شا بیا د ټولو طالب علمانو د (۱۰-۵۰ پورې) شمېرل. | توره تخته |
| | **۴- د نورو عددونو لیکل، د هغوی په صحیح ترتیب کول** | |
| - په مبحث مشق پاڼې ته وکتلو او ور باندې د کار کولو (۲) غوښتنه کول،<br>لار ښودنه کول. | - په کارځان پوهول؛ د تصویرونو په خوا کښې د صحیحو عددونو لیکل، نوی عددونه په بکسونو کښې به صحیح ترتیب سره لیکل. په آخر کښې د ۱۰-۵۰ پورې ټول لسیزه په خپل صحیح ترتیب لوستل. | مشق پاڼه را-۵۰-۱ |

| درسي پلان نمبر: را- ۵۰ | |
|---|---|

د دې درسي پلان په باب شته نورې تبصرې :

۱- د دې د پاڼې په طالب علمانو ته کار اسان شي او په دې سبق کښې د «۵۰» پورې عددونه د لسو لسو په قدمونو کښې ښودل کيږي . په ورپسې درس نمبر اول کښې به باقي لسيزې (۶۰-۱۰۰) وښودل شي . دا د يو اهمه خبره ده چې دا سبق صرف په پوره لسيزو محدود دی . نور نور عددونه مثلاً (۲۱-۲۹؛ ۳۱-۳۹ او نور) به په بيړه راتلونکي مرحله کښې وښودل شي .

۲- د سر په قطار کښې عددونه د دې د پاره ليکلي شوي دي چې طالب علمانو ته د ۵۰ پورې نورې لسيزې کونه وښئ او مشق پاڼې ته د عددونو د ورنقل کولو د پاره يوه ښه نمونه تياره کړي .

| 1-50 ر/ | ۳۰ | ۴۰ | ۲۰ | ۱۰ | ۵۰ |
|---|---|---|---|---|---|
| ۱-۵۰ را | | | | | |

۱۰ — ۲۰ — — —

## د بل درسي پلان د بشپړولو لپاره ځینې مهم ټکي

| د بل درسي پلان د بنودلرنه مغکښې د وړیې درسونو ځاکې |
|---|

| | |
|---|---|
| **عنوان:** د ۱۰ - ۱۰۰ پورې (په مکملو لسیزو کښې) په عددونو مشق کول | |
| **دشاګردانو / استاد مشغاې** | **درسي معاونات** |
| ۱- ذهني تربیه، مخ په وړاندې او مخ په شا د ۱۰-۵۰ پورې په لسولسو کښې شمېر کول ځانله ځانله او په ګډه سره.<br>۲- دمخې ته ولاړو طالب علمانو د وسره ګوتې ښودل شومره چې ورته استاد بیانوي طالب علمان وائي (مکمل لیس ګرونه د ۱۰-۵۰ پورې). د تېر درس په شان د ۱۰-۵۰ پورې عددونه لیکل ۱۰/۲۰ ↓<br>۳- د درسي پلان را - ۵۰ په شان د ۶۰ - ۱۰۰ پورې مکمل لسیزې ښودل:<br>- د پنځه مخې ته ولاړو شاګردانو ۵۰ ګوتې ښودل. د استاد په توره تخته ۵۰ ته اشاره کول، د طالب علمانو په زوره لوستل.<br>- د یو بل طالب علم مخې ته راتلل، د ټولو خپلې ګوتې ښودل (۶۰)، د استاد په توره تخته ۶۰ لیکل. د طالب علمانو په اوچت اواز لوستل.<br>- د ۶۰ طالب علمانو ولاړ پاتې کېدل، او یو یو طالب علم وار په وار بېرته یو ځای کېدل د عدد ۱۰۰ پورې.<br>۴- د استاد اشاره کول د توري تختې عددونو ته؛ د طالب علمانو د غه عددونو ویل؛ د مخې ته ولاړو طالب علمانو د مغونځ په مطابقت ګوتې ښودل (خوداسې مشترنه کول).<br>۵- د ۶۰-۱۰۰ پورې ټول عددونه په اوچت اواز شمېرل، بیا ټول لس ګرونه (۶۰-۱۰۰) پورې مخ په وړاندې او مخ په شا.<br>۶- دویمې مشق پاڼې ته کتل؛ د تصویرونو په څوا کښې بکسونو کښې د صحیح عددونو لیکل؛ په پاسنی عدد پاڼه کښې ټول عددونه په صحیح ترتیب ۶۰، ۷۰، ۸۰، ۹۰، ۱۰۰ لیکل، په لاندینه عدد پاڼه کښې ټول لسیزه د ۱۰-۱۰۰ پورې لیکل. | <br><br><br><br><br>توره تخته<br><br><br><br><br>توره تخته<br><br><br>مشق پاڼه را - ۵۰ - ۲ |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| 2—50 | را | ۹۰ | ۷۰ | ۶۰ | ۱۰۰ | ۸۰ |
| ۲ — ۵۰ | ار | | | | | |

۶۰ — [ ] — [ ] — [ ] — [ ]

۱۰ | ۲۰ | [ ] | [ ] | [ ] | [ ] | [ ] | [ ] | [ ] | ۱۰۰

عنوان : د مکملولس کونو د جمع کولو په ذریعه د ۱۰-۱۰۰ پورې عددونه جوړول

| | د شاګردانو /استاد مشغلې |
|---|---|
| مشق پاڼه را-۵۰-۳ | ۱- ذهنی تربیه : د ۱۰-۱۰۰ او د ۱۰۰-۱۰ پورې په لسولسو کښې شمېر کول .<br>۲- دریمې مشق پاڼې ته په غور کتنل ، په دغو دووکارونو ځان پوهول : عددونه په خالی بکسونو کښې لیکل ؛ د ۱۰-۱۰۰ پورې عددونه د صحیح ترتیب په لحاظ سره وصل کول. |
| تور تخته . | ۳- د استاد د ۱۰ طالب علمانو منتخب ته را بلل . د صفر څخه غوربستل ( د ښی نه کیڼ اړخ ته شروع کول ) چې په خپلو کرتو سره : ۰ ، ۰ + ۱۰ ؛ ۱۰ + ۱۰ ؛ ۱۰ + ۲۰ ؛ تر ۹۰ + ۱۰ پورې وښئی ؛ ( منتخب ته ولاړ طالب علمان د دغه مساوات او عددونه یو په یو په خپلو کرتو سره ښئی ) ، هر څل یو یو طالب علم نتیجه وړاندې کوي . د څلورمې مشق پاڼې د پاسنه برخې په شان د استاد دغه مساوات بالکل د یو بل د لاندې په توره تخته لیکل . |
| مشق پاڼه را-۵۰-۴ | ۴- څلورمې مشق پاڼې ته په غور سره کتنل . په کاربندۍ ځان پوهول . د بکسونو په ډکولو سره د مساوات مکمل ، اول د مشق پاڼې په پاسنه برخه کښې بیا د صفې په لاندینه برخه کښې .<br>په اوچت آواز د نتیجو لوستل . |

| 3 – 50 | ا/ |
|---|---|
| ۳-۵۰ | ا ر |

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱۰۰ | | | | | | | | | ۱۰ |
| ۱۰ | | | | | | | | | ۱۰۰ |



| 4 – 50 | ا/ |
|---|---|
| ۴-۵۰ | ا ر |

۱۰ + ۱۰ = ☐☐      ۵۰ + ۱۰ = ☐☐

۱۰ + ۱۰ = ☐☐      ۶۰ + ۱۰ = ☐☐

۲۰ + ۱۰ = ☐☐      ۷۰ + ۱۰ = ☐☐

۳۰ + ۱۰ = ☐☐      ۸۰ + ۱۰ = ☐☐

۴۰ + ۱۰ = ☐☐      ۹۰ + ۱۰ = ☐☐☐

۸۰ = ☐☐ + ۱۰      ۱۰۰ = ☐☐ + ۱۰

۳۰ = ☐☐ + ۱۰      ۷۰ = ☐☐ + ۱۰

| ریاضي<br>اول ټولګی<br>۱ر - ۵۱ | عنوان: ۱۰۰ پورې په لسیزو کښې جمع | |
|---|---|---|
| **د استاد مشغلې** | **د شاګردانو مشغلې** | **درسي معاونات** |
| | **۱- ۱۰۰ پورې په لسیزو کښې د جمع معرفي کول** | |
| - ۱۰ طالب علمانو ته ووئیل چې مخې ته راشي.<br>- یو نامکمل مساوات په توره تخته لیکل لکه:<br>۶۰+۴۰=☐ غوښتنه کول چې دا به څنګه حل شي. | - د لسو مخې ته راتلل، د نورو مشاهده کول.<br>- په غور سره کتل، بحث کول، ذکر شوی داستعمالول او د عددي قیمیه د عملي کولو په حقله تجویز وړاندې کول. | توره تخته |
| - دیو طالب علم نه غوښتنه کول چې هغه طالب علمانو ترتیب کړي څرګ چې د مساوات مطابق ګروپ بنائي، مرسته کول. | - د یو طالب علم مخې ته راتلل او د غه لس طالب علمان د شپږو (۶۰ ګروپ بنودل) او څلورو (۴۰ ګروپ بنودل) په ګروپونو کښې ترتیبول. مشاهده کول، شمېرل. | |
| - د عدد قیمي د وئیلو غوښتنه کول. | - د یو یو طالب علم عددي قیمي وئیل (په ړومبې ۶۰ ګروپ وچې بیا ورسره ۴۰ ګروپ نورې شوې پس ......) | |
| - په توره تخته د مساوات د مکملولو غوښتنه کول. | - د مکمل مساوات ۶۰+۴۰=۱۰۰ لیکل، په اوچت آواز لوستل. | توره تخته |
| - هم په دې طریقه د نورو مساواتو د حلولو لارښوونه کول، مثلاً<br>۵۰+۴۰=☐<br>۴۰+۲۰=☐<br>۷۰+۳۰=☐ | - نور مساوات حل کول. | |
| | **۲- شمېر پاڼې سره واقف کېدل (۱)** | |
| - ړومبې مشق پاڼې ته د کتلو غوښتنه کول او د کار کتاب په آخر کښې هم د غه مشق پاڼه د شلولو د پاره موندل. | - د کار د کتاب په آخر کښې هم د غه مشق پاڼه موندل، په احتیاط ئې شلول. | مشق پاڼه ۱ر-۵۱-۱ (د کار د کتاب په آخر کښې چې شلول کیږي) |
| - د مشق پاڼې د مطالعه کولو او څه چې پکښې درج وي د هغې د بیانولو غوښتنه کول، د خبرو رهنمائي کول. | - د مشق پاڼې مطالعه کول؛ وئیل، د غمو ۱۰ قطاره، ۱۰ غمي په هر قطار کښې، ټول ۱۰۰، او داسې نور. | |
| - د تجویز غوښتنه کول چې جدول (شمېر پاڼه) د څه د پاره استعمالیږي. | - تجویز وړاندې کول؛ د شمېر د پاره استعمالیږي، د مقدار بنودلو د پاره، د عددي قیمیو وئیلو د پاره. | |
| - د شمېر چارټ سره د عدد ۳۰ د بنودلو غوښتنه کول، مرسته کول. (۲) | - د یو طالب علم مخې ته په چارټ مظاهره کول، د نورو مشاهده کول، خپلو پاڼو سره ئې تکرارول. | شمېر پاڼه (مشق پاڼه ۱ر-۵۱-۱) د شمېر چارټ |
| - مختلفو عددونو سره تکرارول (مکمل لسیز) | - د یو طالب علم مخې ته مظاهره کول، د نورو په خپلو ځایونو تکرارول. | |
| - د جوړه جوړه طالب علمانو نه د مشق د جاري ساتلو غوښتنه کول. | - د یو طالب علم یو عدد وئیل (مکمل لس ګونونه) د بل د متعلقه شمېر نقطې بنودل او نورې نقطې پېټول وار په وار. | |
| | **۳- ۱۰۰ پورې د لسیزو جمع، د شمېر پاڼې استعمالول** | |
| - په توره تخته یو نامکمل مساوات لیکل، لکه: ۴۰+۲۰=☐ | - په غور کتل. | توره تخته |
| - د مساوات د حل کولو د پاره د شمېر پاڼې د استعمالولو غوښتنه کول، مرسته کول. (۳) | - د یو طالب علم مخې ته راتلل، مظاهره کول، خپلو پاڼو سره تکرارول، د بل طالب علم په توره تخته مساوات مکملول. | |
| - د هر مساوات وار په وار د حل کولو رهنمائي کول، مثلاً:<br>۲۰+۳۰=☐ ۷۰+۱۰=☐ ۵۰+۳۰=☐<br>د تشریح د پاره د شمېر چارټ استعمالول. | - ځانله ځانله د مساوات حل کول، د ځکښې په شان د شمېر پاڼې د استعمالولو په ذریعه، په ټولګی کښې ئې مقابله کول. | توره تخته<br>د شمېر چارټ |
| - دا قسمه نور مساوات په توره تخته لیکل، طالب علمانو ته وئیل چې د شمېر پاڼې په ذریعه ئې په سلېټونو حل کړي، مرسته کول. | - په خاموشه کار کول، ټولګی ته د نتائجو لوستل، مقابله کول، اصلاح کول. | توره تخته<br>سلېټونه |

د دې درسي پلان په باب څه نورې تبصرې:

(۱) شمېر پاڼه د ۱۰۰ نقطو (= غمي) پر جدول (تېبل) ده، چې په ۱۰ قطارونو کښې منظم شوې ده، په هر قطار کښې ۱۰ غمي دي. (او گورئ مشق پاڼه را – ۵۱ – ۱) د پنځم او شپږم غمي په منځ کښې د نورو غمو په نسبت لږ څه لوی درز (خلا) دی. د دې اطلاق د پنځم او شپږم قطار په غمو هم کیږي. دا د ماشومانو د پاره شمېر اسانوي. د استاذانو د پاره د شمېر چارټ هو بهو هم په دې طریقه منظم شوی دی. په دې سبق کښې د شمېر پاڼې د استعمالولو نه پس استاد له پکار دي چې ماشومانو ته اووائي چې شمېر پاڼې دې په صحیح طریقه په پر محفوظ ځای کښېږدي. مثلاً د کار د کتاب په منځ کښې. دا په نورو سبقونو کښې هم ضرورت لري او په ماشومانو د نور مشق کولو د پاره استاد دا نوره هم استعمالولی شي.

(۲) په شمېر پاڼه کښې د لسیزو بندولو د پاره ماشومانو له پکار دي چې شروع دې د سرنه تر آخره پورې کوي. کوم قطارونه چې دیر خاص عدد د بندولو د پاره ورته ضرورت نشته، بهتره ئې په کار دی. مثلاً: د کار په کتاب یا په بل کتاب. کله چې په شمېر پاڼه کار کولی شي ماشومان دې دا پاڼه د تکیه په خاطر په ښپلو سلېټونو کېږدي



(۳) ماشومان به بیا د سرنه شروع کوي او په لسیزو کښې به شمېر کوي. داخل به دوئ عددونو ته اشاره کوي، د گوتې او نبی لاس اشاره کوونکې به استعمالوي، مثلاً د ۴۰+۲۰= مطلب دا دی: د سرنه شمېرل، دیر لاس اشاره کوونکې څلورم قطار سره نژدې اېښودل (= ۴۰ غمي) او په بل لاس شمېر جاري ساتل، دوه قطاره نور ښکته راتلل (۲۰ غمي)، شپږم قطار ته رسېدل (= ۶۰ غمي).



د بل درسي پلان د ښودلو نه مخکښې د وړيښې درسونو خاکې

عنوان: د ۱۰۰ پورې په لسيزوکښې د جمع مشق

| درسي معاونات | د شاګردانو / استاد مشغلې |
|---|---|
| شمېرپاڼه | ۱- د ۱۰۰ پورې په لسيزوکښې د جمع د ډېرو مساواتو حل کول د شمېرپاڼې په ذريعه :<br>الف : د استاد يو مساوات ويل ، مثلاً ۱۰ + ۴۰ = . ب : په پاڼه د دوو ګوتو په اښودلو سره د مساوات ښودل د طالب علمانو په ذريعه (څنګه چې په درسي پلان ۱-۵۱ کښې تشريح شوې ده) ، ج : د يو ماشوم په اوچت اواز نتيجه ويل (د اکثرو طالب علمانو د معلومولو نه پس) . د : د يو طالب علم |
| شمېرچارټ | د دوو ګوتو په ذريعه په شمېرچارټ باندې د مساوات ښودل . |
| | ۲- د استاد خوښتنه کول چې شمېرپاڼه يو خوا کېږدې او حساب دې په يادو وکړې . د ډېرو مساواتو حل کول . |
| مشق پاڼه ر۱-۵۱-۲<br>شمېرپاڼه | ۳- د ويشمه مشق پاڼې استعمالول :<br>الف : د طالب علمانو ځانله د شمېرپاڼې د استعمالولو په ذريعه مساوات حل کول .<br>ب : د نتائجو ډکول ، جوړه جوړه مقابله کول او چک کول .<br>ج : تړلګي ته د نتائجو لوستل . |

اول ورځ درسي ساعت ۱-۵۱-۱

| ۱ر | 2-51 |
|---|---|
| ر۱ | ۲-۵۱ |

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۲۰ | + | ۶۰ | = | □ | ۲۰ | + | ۲۰ | = | □ |
| ۴۰ | + | ۴۰ | = | □ | ۳۰ | + | ۱۰ | = | □ |
| ۹۰ | + | ۱۰ | = | □ | ۵۰ | + | ۲۰ | = | □ |
| ۵۰ | + | ۴۰ | = | □ | ۱۰ | + | ۵۰ | = | □ |
| ۱۰ | + | ۷۰ | = | □ | ۳۰ | + | ۳۰ | = | □ |
| ۳۰ | + | ۵۰ | = | □ | ۴۰ | + | ۲۰ | = | □ |
| ۷۰ | + | ۲۰ | = | □ | ۶۰ | + | ۲۰ | = | □ |
| ۶۰ | + | ۴۰ | = | □ | ۱۰ | + | ۴۰ | = | □ |
| ۳۰ | + | ۶۰ | = | □ | ۲۰ | + | ۳۰ | = | □ |

عنوان: د ۱۰۰ پورې د جمع تمرین

| | د شاګردانو / استاد مشغولې | |
|---|---|---|
| | ۱- ذهنی تربیت: د بنکته او پورته نه ۱۰۰ پورې په لسیزو کښې شمېرل، رومبې ځانله ځانله او بیا په ګډه سره. | ۲ دقیقې |
| تورې تختې | ۲- د استاد په تورې تختې لیکل مثلاً: ۳۰ + ۵۰ = □  ۲۰ + ۶۰ = □  ۶۰ + ۲۰ = □  ۵۰ + ۳۰ = □ | |
| د شمېر چارټ | د طالب علمانو یو بل پسې په شمېر چارټ باندې د ښودلو په ذریعه د نتا یجو معلومول. په یو لاس رومبی عدد ته اشاره کول (مثلاً ۳۰) یو ګوته به د چارټ په یو ځ وی. د ۱۰ د ضروری قدمونو د شمېرلو په ذریعه دویم عدد جمع کول (مثلاً د لسو لسو ۵۰ قدمونه = ۵۰ کیږی)، ان ترڅو چې نتیجه ۸۰ ته ورسیږی، په بل لاس اتم قطار ته اشاره کول، بله ګوته به د چارټ هم په صفحه مخ وی. | ۱۰ دقیقې |
| | ۳- د استاد په توره تخته لیکل: ۴۰+۳۰ = □  ۳۰+۴۰ = □  ۷۰+۲۰ = □  ۲۰+۷۰ = □ دوه طالب علمان توره تخته ته رابلل، دیو طالب علم د جدول (ټېبل) په یو مخ مساوات ۳۰ + ۵۰ = ۸۰ ښودل. د بل طالب علم د جدول په بل ځ یو ځای د مساوات ۵۰ + ۳۰ = ۸۰ ښودل (تصویر وګورئ). | ۵ دقیقې |
|  | ۴- د رسمي مشق پاڼو استعمالول، انفرادی سره کار کول، په کار بحث کول، د شمېر پاڼې په ذریعه تړل مساوات حل کول. په مشق پاڼو حلونه لیکل، هم د د غو نتیجو بکسونه د کرښو په ذریعه تړل، د استاد اصلاح کول. | ۱۰ دقیقې |

FAK-GERMAN BAS-ED

| 3 - 51 | ا ر |
|---|---|
| ۳ - ۵۱ | ا د |

| | |
|---|---|
| ۹۰ = ۳۰ + ۶۰ | ۴۰ + ۱۰ |
| = ۲۰ + ۵۰ | ۶۰ + ۳۰ |
| = ۱۰ + ۴۰ | ۲۰ + ۸۰ |
| = ۵۰ + ۳۰ | ۴۰ + ۲۰ |
| = ۸۰ + ۲۰ | ۵ + ۲۰ |
| = ۳۰ + ۴۰ | ۳۰ + ۵۰ |

| ر۱-۳۳ ریاضي درس | عنوان: د ۱۰ پورې په شمېرلو کښې نور مشق | |
|---|---|---|
| | د شاگردانو / استاد مشغلې | |
| | ۱ ـ د مشق تشریح کول: کله چې استاد یو شمېره ورائي (د ۱ - ۱۰ پورې) نو ماشومانو به د هغه شمېرې هومره لاسونه پورته کړي. ماشومان هم یو شمېره ویلې شي او نور ماشومان به هغه هومره خپل لاسونه پورته کړي. | |
| | ۲ ـ استاد به خپل لاسونه په مختلفو شمېرو سره (د لسو پورې) پورته کړي او د هر وار د شمېر د پاره به شاگردان هغه هومره نقطې یا دائرې په سلېټونو جوړوي. مقابله کول د کار، چک کول ئې. څو دا سې مشقونه. | سلېټونه |
| | ۳ ـ د څلورمې مشق پاڼې تشریح کول: د هغه عدد نه دائره تاوول چې د شیزونو د شمېرې سره لګیږي (مطابقت کوي). ګوټه سکې د مثال په حیث استعمالول. | مشق پاڼه ر۱-۳۳-۴ |

| 4 — 33 | ر/ |
|---|---|
| ۴-۳۳ | ر۱ |

| | | |
|---|---|---|
| ۳ ٦ ۸ ۷ | ۵ ۷ ۸ ۱۰ | ۴ (۵) ٦ ۷ |
| ۹ ۲ ٦ ۴ | ۲ ۴ ۷ ۱ | ۵ ۹ ۱۰ ۷ |

| ریاضي<br>اول ټولګی<br>را - ۵۲ | عنوان، د ۱۰۰ - ۰۰ پورې په سلسله کښې د لسګونو تفریق . | |
|---|---|---|
| **د استاد مشغلې** | **د شاګردانو مشغلې** | **درسي معاونات** |
| - لس طالب علمان ټولګي ته رابلل .<br>- د غه لس طالب علمان په دوو ګروپونو (۳ او ۷) کښې ترتیبول ، غوښتنه کول چې ګوتې موږ ونښائي .<br>- د غه لس طالب علمان د شو مساوات د پیاره ترتیبول چې د ټولو حاصل ۱۰۰ وي . | ۱- د جمع داسې مساوات بنودل چې ۱۰۰ یې حاصل جمع وي<br>- د لسو طالب علمانو ټولګي ته راتلل .<br>- مشاهده کول ، د مساوات معلومول .<br>۳۰ + ۷۰ = ۱۰۰<br>- د مساوات موندل او ویل یې؛ د طالب علمانو بېرته خپلو ځایونو ته تلل . | |
| - لس نور طالب علمان مخې ته رابلل او ودرول<br>- د نامکمل مساوات ۱۰۰ - ۷۰ = □ په توره تخته لیکل ، د دې مساوات په عمل کښې بنودلو د پاره د طریقې د پیداکولو غوښتنه کول ، مرسته کول .<br>- په توره تخته د مساوات د مکملولو غوښتنه کول .<br>- په دې داسې مثالونو سره جاري ساتل :<br>۱۰۰ - ۲۰ = □ ، ۱۰۰ - ۸۰ = □ ، ۱۰۰ - ۹۰ = □<br>- د تفریق نور مساوات لیکل چې د ۱۰۰ نه نۀ شروع کیږي مثلاً ۷۰ - ۵۰ = | ۲- د لسګونو د تفریق بنودل<br>- د لسو طالب علمانو مخې ته راتلل .<br>- مشاهده کول ، تجویزونه وړاندې کول ، د عددي قصې د ویلو په ذریعه د طریقې پیداکول ( په اول کښې لس طالب علمانو ۱۰۰ ګوتې وبنودلې . بیا ۷۰ طالب علمانو خپلې ګوتې ښکته کړې ، ان ترڅو چې درې طالب علمان پاتې شول ، ۳۰ ګوتې بنودل )<br>د عددي قصې مطابق عمل کول . ۱<br>- د نتیجې لیکل : ۱۰۰ - ۷۰ = [۳۰]<br>- د مخکښې په شان عمل کول ( عددي قصه ویل ، د ګوتو بنودل ، نتیجې په توره تخته لیکل ) .<br>- د مخکښې ولاړو شاګردانو د ورکړشوي مساوات مطابق عمل کول ، د عددي قصه ویل ، د نتیجې لیکل . | توره تخته |
| - دیره نامکمل مساوات مثلاً ۶۰ - ۲۰ = □ په توره تخته لیکل ، په خاموشۍ سره د مشق عملي مظاهره کول ، د ۱۰۰ نقطو د چارټ استعمالول .<br>- دیر بل غیر مکمل مساوات ورکول ، د طالب علمانو نه غوښتنه کول چې د تفریق د پاره د شمېرپاڼې د استعمال عملي مظاهره وکړي (۱)<br>- درې نور مساوات په توره تخته لیکل غوښتنه کول چې د خپلو اندې والانو سره یې حل کړي ، ۴۰ - ۱۰ = □ ، ۷۰ - ۳۰ = □ ؛ ۹۰ - ۴۰ = □ ؛ په شاګردانو کښې ګرځېدل ، مدد کول .<br>- د حاصلونو ( نتیجو ) د ورکولو غوښتنه کول . | ۳- د تفریق مشق کول ، د شمېرپاڼو استعمالول (۱)<br>- مشاهده کول ، بحث کول ، څۀ چې معلم کوي د هغې تشریح کول په خپلو الفاظو کښې ، د تشریح شوو قدمونو او عبارتونو استعمالول په شان طریقه (۱) ، د استاد عملي مظاهرو تکرارول د بېل بېل طالب علم له خوا . تشریح کول چې دریاضته کړي .<br>- مشاهده کول ، ځانله ځانله د شمېرپاڼې استعمالول د تفریقونو د مساواتو د بنودلو د پاره .<br>- په جوړه جوړه کښې کار کول ، د شمېرپاڼې استعمالول .<br>- نتیجې ویل ، په متعلقه بکسونو کښې د هغوی لیکل . | د شمېرپاڼه<br>توره تخته<br>د شمېرپاڼه |
| - د هر یوه مشق پاڼې د مطالعه کولو غوښتنه کول .<br>- غوښتنه کول چې مشق پاڼه دې ځانله ځانله مکمله کړي شي او د شمېرپاڼې په استعمال سره دې په جوړه جوړه کښې مقابله وکړي . د ضرورت په اندازه مرسته کول .<br>- غوښتنه کول چې ټول ټولګي ته دې نتائج ولوستل شي . | ۴- نور مشق<br>- مشق پاڼه مطالعه کول ، په کار ځان پوهول .<br>- په خاموشۍ سره د مشق پاڼې مکملول ، د شمېر د پاڼې نه کار اخیستل او په جوړه جوړه کښې چېک کول .<br>- د نتیجو لوستل د ټول ټولګي په مخ کښې . | مشق پاڼه را-۵۲-۱ |

د دې درسي پلان په باب ځنې نوري تبصرې:

۱) د شمیر پاڼې د تفریق د مشق د پاره هم استعمالېدے شي. مثال: د مساوات ٦٠ – ٢٠ = ☐ د حلولو په وخت به اول ٦٠٠ نقطې دا سې بنودل کیږي چې ځلور بکسونه = ٤٠. نقطې به د یو کتاب په ذریعه پټول کیږي. شروع به د لاندې خوانه کیږي. بیا به معلم. کتاب چې ځلور بکسونه د ٤٠٠ نقطو سره پټ کړي دي د لسو لسو په قدم پورته خوانه ښکل کیږي. شمیر کول او وئیل "منفي ١٠" "منفي ٢٠" .. بیا معلم اس‌کونه شمیرل کوم چې نه دي پټ کړے شوي.

سفارش کیږي چې هر مشق د دوه ځله وکړے شي. ځکه چې د یو پې خوانه به نتیجه یا حاصل تصدیق کړے شي او د بلې خوانه به د طالب علمانو د پاره مشق وي.

| ر ا | 1 – 52 |
|---|---|
| ر ا | ١ – ٥٢ |

| | |
|---|---|
| ٦٠ – ٥٠ = ☐ | ١٠٠ – ٢٠ = ☐ |
| ٩٠ – ٨٠ = ☐ | ٨٠ – ٤٠ = ☐ |
| ٤٠ – ٣٠ = ☐ | ١٠٠ – ٦٠ = ☐ |
| ٨٠ – ٦٠ = ☐ | ٩٠ – ٧٠ = ☐ |
| ١٠٠ – ٧٠ = ☐ | ٥٠ – ٥٠ = ☐ |
| ٥٠ – ٣٠ = ☐ | ٧٠ – ٤٠ = ☐ |

د بل درسي پلان د بېروډلرنه مخلبنې د وړيېنې درسونو خاکې

| |
|---|
| عنوان: د ايکي يو حاصل د پاره د مختلفو عددونو استعمالول په تفريق کښې. د ۰-۱۰۰ پورې په مسلسله کښې لس کرنه استعمالول |

| درسي معاونات | د شاګردانو / استاد مشغلې |
|---|---|
| توره تخته | ۱- په توره تخته د يو عدد مثلاً عدد ۵۰ ليکل د استاد له طرفه، د طالب علمانو نه غوښتنه کول چې کيدے شي عنو مره داسې مسارات پيدا کړئ چې د هر يوه حاصل همدغه ۵۰ وي. د دغه مساراتو د صحيحو حاصلونو په توره تخته ليکل د شاګردانو له طرفه (د ۵۰ - ۰ = ۵۰ په شمول شپږ امکانات موجود دي). |
| د شمېر پاڼې | د طالب علمانو د شمېر پاڼې استعمالول په يو کرنه حاصل (نتيجې) ته اشاره کول ( = د حل د هر قدم سره سمه کوټه وړل ): بيا د لاندې ځوا ( = ۱۰۰) نه شروع کول، هغه کاغذې عددونه چې پټ کړي دي د لس لس په قدم خوځول او وئيل: ۱۰۰ منفي ۱۰، منفي ۲۰، منفي ۳۰، منفي ۴۰، منفي ۵۰: ۱۰۰ منفي ۵۰ د ۵۰ سره برابر دی." بيا به بېرته د پټولو په کاغذ د ۹۰ نه شروع کول (۹۰ - ۴۰ = ۵۰) او دا سې نور، تر هغې چې ۵۰ - ۰ = ۵۰ ته ورسيږي. |
| سلېټونه | ۲- د طالب علمانو په جوړه جوړه کښې کار کول او څو مره چې ممکن وي د تفريق د هغو مره مساوا تو پيدا کول چې حاصل ئې ۳۰ وي. په سلېټونو ئې ليکل، ټولګي ته د نتيجو لوستل؛ د هغو جوړو تعريف کول د استاد له طرفه کوم چې اته واړه امکانات پيدا کړي وي. |
| مشق پاڼه را ۵۲-۲ | ۳- د دوېمې مشق پاڼې نه کار اخيستل:<br>الف: په کار باندې ځان پوهول.<br>ب: په خاموشئ سره کار کول.<br>ج: په جوړو کښې مقابله کول. د: نتائج ټولګي ته لوستل. |

| ر۱ | 2-52 |
|---|---|
| ر۱ | ۲-۵۲ |

۹۰ - ۸۰ = ۱۰

۶۰ - ☐ = ۱۰

☐ - ☐ = ۱۰

☐ - ☐ = ۳۰

☐ - ☐ = ۳۰

☐ - ☐ = ۳۰

☐ - ☐ = ۶۰

☐ - ☐ = ۶۰

☐ - ☐ = ۶۰

☐ - ☐ = ۵۰

☐ - ☐ = ۴۰

☐ - ☐ = ۷۰

| | |
|---|---|
| | عنوان : د تفریق د عملیې ( مساوات ) په حل کولو کښې نور مشق ، د لس کړنو استعمالول د ۱۰۰ پورې په سلسله کښې |
| | د شاګردانو / استاد مشغلې |
| | ۱ ـ ذهنی مشق : الف : د استاد د تفریق د مساواتو وئیل ، د ۱۰۰ پورې د لسیزونه کار اخیستل مثلاً ۶۰ ـ ۳۰ = ، د طالب علمانو د نتیجو موندل . ب : د بېل بېل طالب علم مخې ته راتلل او د عدد غه قسم یریږ مساوات وئیل . |
| مشق پاڼه را ـ ۵۲ ـ ۳ | ۲ ـ د تفریق د هغو مساواتو حل کول چرته چې تفریق کیدونکے عدد غیب دے : الف : د دریمې مشق پاڼې مطالعه کول ؛ ب : په توره تخته د پومبي وړې مثالونو په حل کولو کښې د استاد لارښوونه کول ، د طالب علمانو دا ګیرنه کول چې عددی قیمت ووائی ؛ ج : په خاموشئ سره کار کول ، د خالی بکسونو ډکول ، که ضرورت وو نو د شمېر پاڼه استعمالول ؛ د : ټولګی ته د نتیجو لوستل ، مقابله کول ، اصلاح کول . |
| مشق پاڼه را ـ ۵۲ ـ ۴ | ۳ ـ د نتیجو په مطابقت د تفریق عملیې ( مساواتونه ) سره بېلول : الف : څلورمه مشق پاڼه مطالعه کول ، د [۸۰ ـ ۳۰] په مثال بحث کول ؛ ب : په بل مثال [۹۰ ـ ۷۰] باندې کار کول ، د حاصل ۲۰ ـ معلومول ؛ د [۲۰] د لاندې بکس کښې د دغه مثال لیکل ، په آخر کښې د مشق پاڼې په پاسنی برخه کښې په مثال چرخه را بنګل . |

| را | 3 − 52 |
|---|---|
| را | ۳ − ۵۲ |

| | |
|---|---|
| ۵۰ − ☐ = ۳۰ | ۷۰ − ☐ = ۳۰ |
| ۹۰ − ☐ = ۱۰ | ۵۰ − ☐ = ۱۰ |
| ۸۰ − ☐ = ۶۰ | ۸۰ − ☐ = ۵۰ |
| ۴۰ − ☐ = ۲۰ | ۱۰۰ − ☐ = ۷۰ |
| ۷۰ − ☐ = ۴۰ | ۶۰ − ☐ = ۱۰ |
| ۶۰ − ☐ = ۵۰ | ۱۰۰ − ☐ = ۲۰ |

| را | 4 − 52 |
|---|---|
| را | ۴ − ۵۲ |

۳۰ − ۱۰   ۴۰ − ۴۰   ۵۰ − ۲۰

۵۰ − ۳۰   ۴۰ − ۱۰   ۲۰ − ۱۰   ۳۰ − ۳۰

۴۰ − ۲۰   ۳۰ − ۲۰   ۱۰ − ۱۰   ۳۰ − ۰   ۵۰ − ۴۰

| ۲۰ | ۳۰ | ۱۰ | ۰ |
|---|---|---|---|
| | ۵۰ − ۲۰ | | |
| | | | |
| | | | |

| عنوان: د ۵۰۰ پورې د جمع او تفریق مشق په لیکلو کښې. | ریاضي<br>اول ټولګی<br>ر ۱ - ۵۳ |
|---|---|

| د استاد مشغلې | د شاګردانو مشغلې | درسي معاونات |
|---|---|---|
| | **۱- په یادو د حساب کولو مشق** | |
| - دا سې وظایف (کارونه) وښیل چې په یادو به یې حساب کیږي. (۱)<br>مثلاً: ۲۰ + ۳۰ = ☐ ۵۰ − ۴۰ = ☐<br>۳۰ + ۱۰ = ☐ ۴۰ − ۲۰ = ☐ | - غوږ نیول، شمېرکول، جوابونه ورکول، همدغه شان کارونه د خپل ځان نه ویل. | |
| | **۲- د یو مساوات لوبه کول** | |
| - د مساوات د یوې لوبې اعلان کول؛ د څلورو څلورو دوه ګروپه طالب علمان مخې ته رابلل.<br>- یو عدد مثلاً ۳۰۰ په توره تخته لیکل او وښیل چې طالب علمان به د جمع او تفریق دومره مساوات څومره چې ممکن وي او حاصل جمع / حاصل تفریق یې ۳۰۰ وي، پیدا کړي.<br>- په مختلفو طالب علمانو او مختلفو عددونو سره د دغه مشق تکرارول. | - مخې ته په خوښه راتلل، د نورو مشاهده کول.<br>- دغه دوه ګروپه دا او هغه مساوات پیدا کوي، په توره تخته د هغوی لیکل (د ۳۰ - ۰ = ۳۰ او ۳۰ + ۰ = ۳۰، ۰ + ۳۰ = ۳۰ په شمول او نور امکانات موجود دي)، د نورو چک کول، اصلاح کول.<br>- د مخکښې ولاړو دوه ګروپونو حساب کول او په توره تخته یې لیکل، د نورو چک کول. | توره تخته |
| | **۳- په لیکلو کښې د مساوات مشق کول** | |
| - وښیل چې زه به اوس نوي نوي کارونه (مساوات) وایم چې د مخکښې نه به سخت وي: جمع او تفریق د درې عددونو سره.<br>- په توره تخته په یو مثال د کار کولو په مرقع لار ښودنه کول، مثلاً لیکل ۱۰ + ۲۰ + ۲۰ = ☐، د حل (حساب کولو) قدمونه په توره تخته لیکل د طالب علمانو د ویلو مطابق.<br>- د جمع درې نور مثالونه ورکول چې حاصل جمع یې ۵۰۰ وي.<br>- په توره تخته د تفریق د یو مساوات لیکل لکه:<br>۵۰ − ۲۰ − ۱۰ = ☐<br>- وښیل چې د لاندې مسائلو (کارونو) د پاره به قدمونه په یادو حسابیږي، څو وظایف (کارونه) وښیل لکه:<br>۴۰ − ۱۰ − ۲۰ = ☐ (۲) | - په پوره توجه سره غوږ نیول.<br>- قدم په قدم د مساوات حلول، د هر قدم حساب (مساوات) په اوچت اواز ویل:<br>۱۰ + ۲۰ = ۳۰<br>۳۰ + ۲۰ = ۵۰<br>۱۰ + ۲۰ + ۲۰ = ۵۰<br>- بحث کول، مساوات قدم په قدم حلول، په تخته یې لیکل.<br>- د هر قدم او حاصل پیداکول یې او په توره تخته د هغوی لیکل:<br>۵۰ − ۲۰ = ۳۰<br>۳۰ − ۱۰ = ۲۰<br>۵۰ − ۲۰ − ۱۰ = ۲۰<br>- غوږ نیول، په یادو حساب کول، د بېل بېل ماشوم جواب ورکول. | توره تخته |
| | **۴- نور تحریري مشق** | |
| - د پورتنۍ مشق پاڼې د مطالعه کولو غوښتنه کول.<br>- مدد کول، چک کول، اصلاح کول، د ټولو نتیجو د لوستلو غوښتنه کول. | - د مشق پاڼې مطالعه کول، په کار ځان پوهول، په بکسونو کښې د حاصل په لیکلو سره په خاموشۍ د مساوات مکملول.<br>- په اوچت اواز د مساوات لوستل، یو طالب علم یو مساوات. | مشق پاڼه ر۱-۵۳-۱ |

د دې درسی پلان په باب څه نورې تبصرې ،

(۱) خو وخت به طالب علمانو ته ورکول کیږي چې کمزوري طالب علمانو ته هم د مساوات د حلولو موقع په لاس ورشي. ترڅو پورې چې د پرو طالب علما نو د حل تجویزونه وړاندې کړي نه وي نو ترمخې پورې به د صحیح جواب تصدیق زر نه کوي. (په زر تصدیق کولو سره د نورو طالب علمانو نه د تجویزونو د وړاندې کولو موقع د لاسه وځي.)

(۲) کوم کارونه چې ورکوئ نو په مزه مزه به یې ورکوئ ، د هر کار په منځ کښې به لږ څه وقفه کوئ چې طالب علمان د حساب کولو د پاره وخت ولري. کارونه به څو څو ځله تکرارول کیږي چې طالب علمانو ته په معنوي باندې د ښه پوهېدلو د پاره موقع حاصله شي.

| را | 1-53 |
|---|---|
| را | ۱-۵۳ |

| | |
|---|---|
| ۳۰ + ۱۰ + ۲۰ = ☐ | ۷۰ − ۲۰ − ۴۰ = ☐ |
| ۱۰ + ۴۰ + ۳۰ = ☐ | ۸۰ − ۳۰ − ۲۰ = ☐ |
| ۵۰ + ۲۰ + ۱۰ = ☐ | ۶۰ − ۴۰ − ۱۰ = ☐ |
| ۴۰ + ۴۰ + ۱۰ = ☐ | ۱۰۰ − ۶۰ − ۲۰ = ☐ |
| ۲۰ + ۴۰ + ۳۰ = ☐ | ۹۰ − ۵۰ − ۴۰ = ☐ |
| ۶۰ + ۳۰ + ۱۰ = ☐ | ۷۰ − ۱۰ − ۳۰ = ☐ |

| اول ټولګی درسي ورځې ر-۵۲-۲ | عنوان: متضاد ( مخالفې ) عملیې پیداکول ، د لسیزو استعمالول . | |
|---|---|---|
| | د شاګردانو / استاد مشغلې | درسي معاونات |
| | ۱- د ورکړشو مساواتو عملي مظاهره کول او د هغوئ عکس ( متضاد ) مساوات جوړول ؛<br>الف: د پنځو طالب علمانو مخې ته را بلل او ځئ چې په هغوئ کول کېږي هغه ورته پټ وئیل ( لاندې ج وګورئ ! ) . ب: د استاد دې نورو طالب علمانو ته وئیل چې تاسو په غور سره دا پنځه طالب علمان مشاهده کړئ چې څه کوي ، ځکه چې دوئ به بیا یوه عددي قصه ، د د غو پنځو طالب علمانو په کړنو ( عمل ) باندې وائي . ج ، د د غو پنځو طالب علمانو د لنډې شېبې د پاره د خپلو ترلو ګوتو بنائیل . بیا د درې طالب علمان خپل لاسونه بېرته بنکته کول ، دیرې شېبې نه پس د دغه درې طالب علمانو خپل لاسونه بیا پورته کول . د ، د عددي قصې وئیل د طالب علمانو له خوا : ګوتې اول ۵۰ - وې ، بیا ۳۰ - ګوتې ترېنه بنکته ( لرې ) شوې او صرف ۲۰ - ګوتې پاتې شوې . خو روسته هغه ۳۰ - ګوتې ورسره بېرته یوځای شوې چې په آخرکښې د اول په شان ۵۰ - ګوتې شوې . هـ : د عددي قصې د پاره د مساوات لیکل په توره تخته د شاګردانو له طرفه : ۵۰-۳۰=۲۰   ۲۰+۳۰=۵۰<br>۲- په مختلفو عددونو سره د عمد ته مشق څو څو ځله تکرارول ، د جمع د مساواتو نه شروع کول او د تفریق په مساواتو سره یې جاري ساتل مثلاً : ۳۰+۱۰=۴۰   ۴۰-۱۰=۳۰<br>۳- د دې مشق پاڼه استعمالول د مساواتو د حل کولو او د هغوئ د عکس ( ضد ) د معلومولو او حل کولو د پاره<br>الف: په اول مثال یوځای کار کول ؛ ب: په خاموشۍ سره د مشق پاڼې مکملول ؛ ج: نتیجې لرستل | توره تخته<br><br>مشق پاڼه را-۵۲-۲ |

| | | |
|---|---|---|
| ر ا 2 – 53<br>ر ا ۲ – ۵۳ | | |
| □ = ۵۰ + ۳۰ | ۷۰ = □ + ۳۰ | □ = ٦۰ + ۳۰ |
| ۳۰ = □ – □ | ۳۰ = □ – ۷۰ | ۳۰ = ٦۰ – □ |
| □ = ۴۰ + ۵۰ | ٦۰ = □ + ۴۰ | □ = ۸۰ + ۲۰ |
| ۵۰ = □ – □ | ۴۰ = □ – ٦۰ | ۲۰ = ۸۰ – □ |
| □ = ۳۰ + ۲۰ | ۸۰ = □ + ۱۰ | □ = ۷۰ + ۲۰ |
| ۲۰ = □ – □ | ۱۰ = □ – ۸۰ | ۲۰ = ۷۰ – □ |

**عنوان: د ۵۰- پورې په جمع او تفریق کښې نور نور مشق**

| د شاګردانو / استاد مشغلې | |
|---|---|
| ۱- ذهنی تربیت ، د ۱۰-۱۰۰ پورې په مکسلرلسیزو کښې مخ په وړاندې او مخ په شا د لسولسو او شلو شلو په قدم کښې شمېر کول . | |
| ۲- د دریمې مشق پاڼې نه کارا خیستل ؛ | مشق پاڼه را-۳-۵۳ تور تخته |
| الف : د بښی اړخ په درې ونډاینو (کاړونو) باندې په توره تخته کار کول . | |
| ب : د کيڼې خوا د کار مکسلرل په خپله د شاګردانو له خوا : په خاموشۍ سره کار کول ، د پوانډې وال سره مقابله کول ، هرګکی ته د نتیجو لوستل . | |
| ۳- د جمع او تفریق مخلوط مسابلت یوځای په توره تخته حلول ، لکه : ۴۰ + ۱۰ − ۳۰ = □ ؛ ۵۰ − ۴۰ + ۲۰ = □ ، قدم په قدم محاسبه (حساب) کول . | توره تخته |
| ۴- د شلورمې مشق پاڼې نه کارا خیستل ؛ | مشق پاڼه را-۵۳-۴ |
| الف : په کارځان پوهول . | |
| ب : په خاموشۍ کار کول ، د انډی وال سره د کار کره (چک) کول ، د نتیجو لوستل . | |

| را | 3 − 53 |
|---|---|
| را | ۳-۵۳ |

| | |
|---|---|
| ۲۰ + ۴۰ = □ <br> □ − ۴۰ = ۳۰ | ۸۰ − ۳۰ = □ <br> □ + ۳۰ = ۸۰ |
| ۱۰ + ۸۰ = □ <br> □ − □ = ۱۰ | ۴۰ − ۲۰ = □ <br> □ + □ = ۴۰ |
| ۲۰ + ۴۰ = □ <br> □ − □ = □ | ۷۰ − ۳۰ = □ <br> □ + □ = □ |

| را | 4 − 53 |
|---|---|
| را | ۴-۵۳ |

| | |
|---|---|
| ۱۰ + ۲۰ + ۱۰ = □ <br> ۲۰ + ۱۰ + ۲۰ = □ <br> ۱۰ + ۱۰ + ۳۰ = □ | ۵۰ − ۲۰ − ۱۰ = □ <br> ۴۰ − ۱۰ − ۲۰ = □ <br> ۳۰ − ۱۰ − ۲۰ = □ |
| ۳۰ + ۲۰ − ۱۰ = □ <br> ۱۰ + ۴۰ − ۲۰ = □ <br> ۳۰ + ۱۰ − ۴۰ = □ | ۳۰ − ۲۰ + ۲۰ = □ <br> ۳۰ − ۲۰ + ۴۰ = □ <br> ۴۰ − ۴۰ + ۲۰ = □ |

ریاضي
اول ټولګی
(۱ - ۵۴)

عنوان، د عددي جدول (ټېبل) جوړولو په ذریعه شمېر (۱)

| د استاد مشغله | د شاګردانو مشغله | درسي معاونات |
|---|---|---|
| | ۱- ۱۰-۲۰ پورې د عددي جدول (ټېبل) تکرار | |
| - د ۱-۲۰ پورې د عددي جدول (ټېبل) د پاره په تور تخته د بکسونو دوه قطارونه جوړول.<br>- دیو طالب علم تورې تختې ته را بلل او د نورو طالب علمانو له خوا وئیلې شوي عددونه لیکل.<br>- تسم تسم داسې مشقونه مخته را وړل چې عددونو ۱۰-۲۰ پورې تعلق لري: مثلاً: دیو قطار پټول او د پټ شوو عددونو د وئیلو غوښتنه کول. د ۱، ۲، ۳ په قدمونو کښې مخکښې او روستو شمېرل | - په غور کتل، وئیل چې په جدول (ټېبل) کښې په نمبر ۱۰ کوم ځای لیکلې شي.<br>- د ځانله ځانله طالب علمانو د ۱-۲۰ پورې په مخ کښې چې څنګه یې خوښه وي یو عدد وئیل، د مخې ته ولاړ طالب علم په صحیح بکسونو کښې د وئیلې شوو عددونو لیکل، د هر ۴ عدد ونو نه پس د یو بل طالب علم د لیکلو د پاره انتخاب کول.<br>- دا مشقونه کول، که ممکنه وي خپل داسې مشقونه پیدا کول چې لسیز او ۱۰ سره یو ځای کوي. | تور تخته |
| | ۲- ۲۱-۳۰ پورې عددونه معرفي کول | |
| - د ۱۰-۲۰ پورې د جدول (ټېبل) د لاندې د ۱۰ بکسونو یو دریم قطار جوړول.<br>- د هغه عددونو د لیکلو غوښتنه کول د کوم چې په بکسونو کښې لیکل په کار وي، د صحیح عددونو د معلومولو او لیکلو لارښوونه کول. (۲) | - په غور کتل.<br>- تر ممکن حده د شمېرلو د جاري ساتلو په ذریعه د وړیسې عددونو د معلومولو کوشش کول. (۲) نوم یې اخیستل، ځای یې ښودل، لیکل یې، پړله پسې یې لوستل، ړومبې په ګډه بیا ځانله ځانله. | تور تخته |
| | ۳- د عددونو په جوړید لو ځان پوهول، هم په دغه طریقه ۵۰ پورې د جدول (ټېبل) مکملول | |
| - د ۱۰ بکسونو یو بل قطار جوړول، د نورو عددي مشابهتونو د معلومولو غوښتنه کول (۳۱-۴۰ پورې)<br>- هم په دغه طریقه د ۴۱-۵۰ پورې عددونه معرفي کول.<br>- د ۱-۵۰ پورې د زړو او نورو عددونو د مشق د پاره یو څو زباني مشقونه، اعلان کول چې د ۱-۵۰ پورې جدول (ټېبل) به څه ساعت پس وران کړې شي. | - مشاهده کول، هغه عددونو ته کتل کوم چې مخکښې لیکلې شوي دي.<br>په قطارونو او کالمونو (ستونونو) کښې د زیات نه زیات مشابهتونه ښکاره کول. د نورو عددونو نومونه اخیستل، په تور تخته په صحیح بکسونو کښې د هغوی لیکل، په ترتیب سره یې لوستل، ړومبې په ګډه بیا ځانله ځانله.<br>- د ۴۱-۵۰ پورې په نورو عددونو هم هغه عمل کول څنګه یې چې د ۲۱-۳۰ پورې او د ۳۱-۴۰ پورې په عددونو کړې دي.<br>- د ځانله ځانله طالب علمانو د هغه عددونو نومونه اخیستل چې استاد ورته اشاره کوي یا هغه عددونو ته اشاره کول چې استاد (یا طالب علم) یې په اوچت اواز وائي. مخکښې او روستو شمېرل. | تور تخته |
| | ۴- ۱-۵۰ پورې په جدول (ټېبل) کښې نورې عددونه لیکل | |
| - ړومبی مشق پاڼې ته د کتلو غوښتنه کول (۳)<br>- د ۱-۵۰ پورې د پاسنۍ برخې د ډکولو غوښتنه کول، هغه عددونه استعمالول چې د ټیک کولو د پاره مخکښې ډک کړې شوي دي. په تور تخته د ۱-۵۰ پورې عددونه وړاندې کول، په طالب علمانو ګرځېدل، مرسته کول، اصلاح کول. | - مشاهده کول، د دې مشق پاڼې او په تور تخته د تصویرونو (رسمونو) په مخ کښې مشابهتونه پیدا کول.<br>- جوړه جوړه کار کول، نورې عددونه ډکول په کومه طریقه یې چې خوښه وي. مثلاً؛ یو قطار بل پسې یا یو کالم بل پسې، د دې د عددونو ترتیب لوستل. | مشق پاڼه (۱-۵۴)-۱ |

| درسي پلان نمبر: ۱ - ۵۴ | |
|---|---|

د دې درسي پلان په باب څو نوټ تبصرې :

(۱) استاد به د سبق په دوران کښې قدم په قدم عددي جدول (ټېبل) جوړوي. پروميې صفحه لۀ د ۱-۲۰ پورې عددونو دپاره دوه قطاره چې په کښې بکسونه وي په کارډي-دد رسمي پلان د قدمونو مطابق ۲۰ استاد د نورو ۱۰ عددونو دپاره همېشه يوبل قطار جوړوي ترڅوچې ۱۰ - ۵۰ پورې جدول د سبق په آخر کښې په توره تختله باندې وي او په پنځه قطاره کښې چې ۵۰ - بکسونه ولري په نظر راشي.

(۲) استاد لۀ په کارډي چې ماشومانو ته موقع ورکړي چې ترممکن حده پخپله نوي عددونه پيدا کړي. نوي عددونه يا په شمېر جاري ساتلو يا د عددي جدول دکتلو په ذريعه پيدا کېدے شي اودا معلومول مثلاً چې په هم دغه کالم (ستون) کښې عددونه همېشه هم دغه يونټ لري (۱، ۱۱، ۲۱ ؛ ۴، ۱۴، ۲۴ .......... ۰۰۰) ياداچې د پرومبي قطار عددونه د نورو قطارونو يونټونه معلوميږي (۴، ۳، ۲، ۱ ...۱۴، ۱۳، ۱۲، ۱۱ ...۲۴، ۲۳، ۲۲، ۲۱). کېدے شي چې ځينې طالب علمان دا عددونه د ځکښې نه پېژني خو استاد دې دا خبره يقيني کړي چې دوئ ځکښې منهٔ نۀ وهي اوصرف ځايونو (پوزيشنونو) ته توجه ورکوي، په کومه طريقه چې دا ليکلے شي او دا سې نور. بل طرف ته کېدے شي چې يو طالب علم هم دا عددونه ونۀ پېژني او بيا دې استاد مدد وکړي، هرعدد دې په مزه او وائي، په احتياط دې وليکي، تکرار دپاره دې وخت ورکړي او دا سې نور.

(۳) دامشق پانړه په ورپسې درس نمبر اول کښې هم استعماليدے شي.

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | ۲ | | | | | | | | ۱۰ |
| ۱۱ | | | | | | | | | |
| | | | | | | | ۲۸ | | |
| | | | ۳۴ | | | | | | |
| | | | | | | | | | ۵۰ |
| | | | | | | | | | |
| | | | | | | | | | |
| | | | | | | | | | |
| | | | | | | | | | |
| | | | | | | | | | |

عنوان: د لسو ۱۰ پورې شیزونه شمېرل او ترتیبول؛ د عدد ۱۰ لیکل

| د استاد مشغلې | د شاګردانو مشغلې | درسي معاونات |
|---|---|---|
| | **۱- د عدد ۱۰ سره اشنا کېدل** | |
| - د لسو ماشومانو نه غوښتنه کول چې هر یو یو پنسل را وُباسي.<br>- یو څو پنسلونه ترې لرې کول او پوښتنه کول چې اوس څو پکښې پاتې شو. (۱۰)<br>- پوښتنه کول چې څومره پنسلونه لرې کړے شوي دي.<br>- د مختلف شمېر پنسلونو په لرې کولو سره دد ې مشق بیا بیا کول (د پنسلونو مختلف شمېر تر لسو پورې)، په مختلفو شاګردانو د ټولګی په مخکښې دد ې عملي مظاهره کول.<br>- د عدد ۱۰ تصویري کارډ وړاندې کول؛ په دیوال ئې ځړول؛ د پنسلونو یو خاص شمېر پټول څو مشقونه په مختلفو عددونو سره کول. | - خپل پنسلونه په ستېنډ (د پنسلونو لوښي) کښې ایښودل (ستېنډ ډک شو).<br>- مشاهده کول، شمېرل، جواب ورکول.<br>- د پر شاګردان جواب ورکوي بالاخره په ستېنډ کښې د پنسلونو په بېرته ایښودلو سره چک کول چې ستېنډ بېرته بیا ډک شي.<br>- شمېرل چې څو پنسلونه پاتې دي؛ حسابول چې څومره ترینه اخیستل شوي دي؛ د ستېنډ په بېرته ډکولو سره ئې چک کول.<br>- مشاهده کول، کوم پنسلونه چې لیدل کېږي د هغوئ شمېرل، حسابول چې څو پنسلونه پناه کړے شوي دي. | د لسو شیزونو د پاره ستېنډ (۱)، پنسلونه یا قلمونه<br><br>د عدد تصویري کارډ د لسو سرو پنسلونو سره |
| | **۲- د عدد ۱۰ لیکل** | |
| - عدد ۱۰ په توره تخته په خاص طور لیکل. | - د ګوتې په ذریعه عدد ۱۰ په هوا کښې لیکل، بیا په سلېټونو د ګوتې په ذریعه او بیا په چاک (تباشیر). | توره تخته<br>سلېټونه |
| | **۳- د عدد ۱۰ د لیکلو د پاره مشق** | |
| - د ماشومانو نه غوښتنه کول چې د عدد ۱۰ د لیکلو مشق په مشق پاڼه ر ۱ - ۲۴ - ۱ کښې وکړي.<br>- ماشومانو ته بلنه ورکول چې عدد ۱۰ خپلو سلېټونو ته را نقل کړي. | - په ټکی ټکی کرښو باندې د قلم کرځولو په ذریعه عدد ۱۰ لیکل او همدارنګه خالي بکسونو ته د ورنقل کولو په ذریعه.<br>- د مشق پاڼې نه د چاک (تباشیر) په ذریعه عدد ۱۰ خپلو خپلو سلېټونو ته ورنقلول. | مشق پاڼه ر ۱-۲۴-۱<br><br>سلېټونه |

د بل درسي پلان د ښوونځي مخکښې د ورپښې درسونو خاکې

| | |
|---|---|
| | **عنوان: د ۵۱ - ۱۰۰ پورې عددونه معرفي کول** |
| **درسي معاونات** | **د شاګردانو / استاد مشغلې** |
| تووره تخته<br><br><br><br><br>مشق پاڼه را-۵۴ - ۱<br><br><br><br><br>تووره تخته | ۱- تکرار / ذهني تربیت: ۵۰ پورې شمېرل. استاد یا به طالب علمان عددونه لري، د څلورو طالب علمانو د مخو پهٔ توره تخته لیکل، د استاد د ښوونه د اندازې نکولو غوښتنه کول چې ایا عددونه صحیح لیکلي شوي دي، د هغو عددونو ورانول چې ښنانهٔ دي. بیا عددونو ته اشاره کول، د طالب علمانو د دې عددونو نوم اخیستل.<br>۲- پروګرامه مشق پاڼې ته بیا کتل. استاد د نوي عددونو پوري نظار پر پهٔ بل پسې معرفي کوي، هم هغه طریقه اختیارول څنګه چې پهٔ پاسني درسي پلان (را - ۵۴) کښې بیان شوې ده. د دې مطلب دا دی چې ۵۱ - ۶۰ پورې عددونو سره شروع کول، شاګردان د دې عددونو سره وا قف کول، د شاګردانو نوي عددونه لوستل، د پروګرامه مشق پاڼې پهٔ صحیح بکسونو کښې لیکل، د استاد پهٔ توره تخته بکسونو کښې د دې عددونو لیکل، بیا ۶۱ - ۷۰، ۷۱ - ۸۰، ۸۱ - ۹۰ او ۹۱ - ۱۰۰ پورې جاري ساتل.<br>۳- د استاد ۵۱ - ۱۰۰ پورې نوو عددونو سره متعلقه د پر مشقونه ترتیبول، مثلاً: شمېرکول، د عددونو نومونه اخیستل، د عددونو لیکل. |

اول ټمبر درسي ورځې را-۵۴

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱۰ | | | | | | | | ۲ | ۱ | ط-۱ ک-۱ |
| | | | | | | | | | ۱۱ | ر ر |
| | | ۲۸ | | | | | | | | |
| | | | | | | ۳۴ | | | | |
| ۵۰ | | | | | | | | | | |
| | | | | | | | | | | |
| | | | | | | | | | | |
| | | | | | | | | | | |
| | | | | | | | | | | |
| | | | | | | | | | | |

عنوان : ۱ - ۱۰۰ - پورې د عددونو لږ مشق

| د شاګردانو / استاد مشغلې | |
|---|---|
| ۱ - ذهني تربيت : د ۱۰ - ۱۰۰ - پورې په مکملو لسيزو کښې شنکښې او روستو شمېرل ، د استاد په اشارې کولو سره د يو مکمل لسيز نه تر بل مکمل لسيز پورې شمېرل ، مثلاً د ۸۰ - ۹۰ ، ۲۰ - ۳۰ ، ۶۰ - ۷۰ پورې او داسې نورو شمېرل | |
| ۲ - دويمې مشق پاڼې ته کتل . په کارځان پوهول ، ډکول ئې ، جوړه جوړه کارکول . طالب علمانوته د خپل کار او د مشق پاڼې د عددی جدول (ټېبل) د تعلق په باب کوم کار کړے دے د هغې تشريح کول (مخامخ صفحه) يعنې د چک کولو د پاره د عد دونو مقابله کول ، په آخر کښې نتائج په زوره لوستل . | مشق پاڼه را-۵۴-۲ |
| ۳ - درېيمې مشق پاڼې ته کتل . په کارځان پوهول ، د کار حل کول هم په هغه طريقه شنګه چې دويمې مشق پاڼې کښې شوے دے . په آخر کښې په سلسله کښې د ترلو عددونو ويل شنګه چې د دويمه او درېيمه مشق پاڼه کښې معلوم شوے دے . | مشق پاڼه را-۵۴-۳<br>مشق پاڼه را-۵۴-۲ |



| 2 – 54 | ۱ ر |
|---|---|
| ۲ - ۵۴ | ر ۱ |

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | | | | | | | | | ۱۱ |
| ۳۰ | | | | | | | | | |

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | | | | | | | | | ۸۱ |
| ۱۰۰ | | | | | | | | | |

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | | | | | | | | | ۵۱ |
| ۷۰ | | | | | | | | | |

| 3 – 54 | ۱ ر |
|---|---|
| ۳ - ۵۴ | ر ۱ |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۰ | ۵ | ۱ |
| | | |
| | | |
| | | |
| | | |
| | | |
| | | |
| | | |
| | | |
| ۱۰۰ | ۹۵ | ۹۱ |

ریاضي
اول ټولګی

ر ا - ۵۵

عنوان: د ۱۰۰ پورې عددونو سره واقف کېدل، مخ په وړاندې او مخ په شا شمېرل، غیب عددونه موندل.

| د استاد مشغله | د شاګردانو مشغله | درسي معاونات |
| --- | --- | --- |
| | ۱- مخ په وړاندې او مخ په شا شمېرلو کښې ذهني مشق | |
| - د مخ په وړاندې شمېرلو غوښتنه کول مثلاً د ۱۰-۲۰ پورې.<br>- د ۲۰ نه ۱۰ پورې د مخ په شا شمېرلو غوښتنه کول، ځانله ځانله او په ګډه.<br>- هم په هغه طریقه تکرارول، نور عددونه استعمالول لکه:<br>۳۰ نه ۲۰ پورې<br>۶۰ نه ۵۰ پورې | - ۱۰ نه ۲۰ پورې مخ په وړاندې شمېرل په زباني (تقریری) طور (د چارټ د مدد نه بغیر).<br>- زباني (تقریری) طور د ۲۰ نه ۱۰ پورې مخ په شا شمېرل، ځانله ځانله او په ګډه.<br>- د مختکښې په شان د مشق تکرارول. | |
| | ۲- په صحیح سلسله کښې عددونه ترتیبول (۱) | |
| - د ۱-۱۰۰ پورې عددي کارډونه استعمالول، د ۱۰، ۱۱ پورې سټ منتخب کول، مثلاً ۵۰-۶۰ پورې، د ۱۱ په ۱۱ طالب علمانو تقسیمول (۲)<br>- کارډ نیوونکو نه غوښتنه کول چې مخې ته راشي او خپل ځانونه په صحیح سلسله کښې ترتیب کړي.<br>- درې طالب علمانو ته ووئیل چې ټولګي ته شا کړي او خپل عددونه پټ کړي.<br>- نورو طالب علمانو ته ووئیل چې مخې ته راشي، بیرځل بیا څه عددونه تقسیمول، مشق تکرارول، همېشه څو طالب علمانو ته د بېرته راګرځېدلو او د خپلو عددونو د پټولو په حقله ووئیل (۳ - ۵ پورې طالب علمان)<br>- د مختلفو طالب علمانو، مختلفو کارډونو او د لس (۱۰) نه لویو ګروپونو په ذریعه مشق تکرارول. مثلاً ۱۵-۲۸ یا ۳۲-۴۵ یا ۵۹-۷۵ او داسې نور. | - ځینې کارډونه اخلي، نور ورته په غور ګوري.<br>- د کارډ نیوونکو خپل ځانونه په صحیح سلسله کښې ترتیبول، د نورو چک کول.<br>- د کارډ نیوونکو په صحیح سلسله کښې ودرېدل، خو د درې عددونو نه لیدل، د نورو معلومول چې کوم عددونه پټ دي، چې صحیح عدد د او وئیلې شي نو د دې کارډ لرونکي طالب علم بېرته راګرځېدل، بیا ئې خپل کارډ ښودل.<br>- غیب عددونه موندل، د دې عددونو لرونکو طالب علمانو بېرته راګرځېدل، ټوله سلسله د ټول ټولګي له خوا لوستل.<br>- کله چې مشق نور هم ګران شي نو هم په دغه طریقه د مشق جاري ساتل. | عدد کارډونه ۱ - ۱۰۰ پورې |
| | ۳- په یوه سلسله کښې د غیبو عددونو معلومولو کښې مشق | |
| - د ورمبۍ مشق پاڼې د مطالعه کولو غوښتنه کول او په ګډه بحث کول.<br>- غوښتنه کول چې مشق پاڼه مکمله کړي او په یکسونو کښې غیب عددونه ولیکي. | - د مشق پاڼې مطالعه کول، په ګډه بحث کول او ځان پوهول.<br>- د مشق پاڼې مکملول، جوړه جوړه کار کول، چک کول. | مشق پاڼه را-۵۵-۱ |

| درسی پلان نمبر: را- ۵۵ | |
|---|---|

د دې درسي پلان په باب شوې نورې تبصرې ؛

(۱) دا یو ژوندے او سرګرمه مشق کیدے شي او د طالب علمانو به ورسره وخت ډېر په خوند تیرشي. دا به ښه خبره وي چې استاد په دې مزه دار مشق کښې څومره چې ممکن وي هغومره ډېرو شاګردانو ته برخه ورکړي ، خو د وخت خیال به هم ساتي .که چیرې استاد ډېر وخت په دې مشق کښې ولګوي نو ماشومان به ستړي او د بل مشق د پاره به هم وخت کم پاتې شي .

(۲) کله چې استاد ددې فیصله کړي چې څومره کارډونه استعمالول په کار دي نو د دې د پاره به د ټولګي د طالب علمانو شمېر او د ټولګي د کمرې اندازې ته ګوري او د هغې مطابق به فیصله کړي .که چېرې د ټولګي کمره غټه او مخې ته کافي طالب علمان ودرېدے شي نو د مشق د زیات مشکل کولو د پاره ۱۵ یا د دې نه زیات طالب علمان کارډونه اخیستلے شي .

| | |
|---|---|
| 1—55 | را |
| ۱-۵۵ | را |

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۲۴ | | | | | ۱۹ | | | ۱۶ | ۱۵ |
| ۵۶ | | | ۵۳ | | | | ۴۹ | | ۴۷ |
| ۲۴ | | | | | ۲۹ | | ۳۱ | ۳۲ | ۳۳ |
| ۸۹ | | | ۹۲ | | | | ۹۶ | | ۹۸ |
| ۷۵ | | | ۷۲ | | | ۶۹ | | | ۶۶ |

| د بل درسي پلان د ښوونځي د ورځني درسونو خاکې |
|---|

| اول نصب درس ورشي ۵۵ - را | عنوان: د ۱۰ - ۱۰۰ پورې په سلسله کښې لوی او وړوکی. | |
|---|---|---|
| | د شاګردانو / استاد مشغلې | درسي معاونات |
| | ۱- ذهني تربیت: دیو عدد ویل د استاد له طرفه، د طالب علمانو د دا سې یو عدد ویل چې د استاد د عدد نه وړوکې وی او بل دا سې عدد ویل چې د استاد د عدد نه لوی وی. د بېر مثالونه.<br>۲- د عدد ۱۰ کارډ په یو کم (ورکوټی) کنج (ګوټ) کښې او عدد ۱۰۰ کارډ د هغې په مقابل (مقابل)، زیات (غټ) کنج (ګوټ) کښې ځای کول. ټولو طالب علمانو ته د اعدادو کارډونه تقسیمول د استاد له طرفه. د دوو طالب علمانو مخې ته رابلل. د ورکوټو عددونو شاګردانو تلل ورکوټی کنج ته، د لویو عددونو شاګردانو تلل لوی (زیات) کنج ته. د دوو طالب علمانو بیا بیا مخې ته را بلل د استاد له خوا، کوم چې به یا ورکوټی (د کم کنج ته) یعنې وړوکی عدد ته او یا به لوی کنج یعنې لوی عدد ته ځي. ان ترهغې چې ټول طالب علمان په دغو دوو کنجونو کښې ودریږی په آخر کښې دیر کنج طالب علمانو ځان ترتیبول په صحیح سلسله کښې، د هغوی مېز ته تلل. بیا په بل کنج کښې د طالب علمانو ځان په صحیح سلسله کښې برابرول، مېز ته تلل.<br>۳- دویمې مشق پاڼې ته کتل. د طالب علمانو په صحیح ترتیب سره په بکسونو کښې عددونه لیکل. | مشق پاڼه را- ۵۵-۲ |

| را | 2 - 55 |
|---|---|
| را | ۲-۵۵ |

۳۹ ۴۰ ۴۱ ~~۳۷~~ ~~۳۸~~

□ — □ — □ — ۳۸ — ۳۷

۶۲ ۵۹ ۶۳ ۶۰ ۶۱

□ — □ — □ — □ — □

۷۷ ۷۹ ۸۱ ۷۸ ۸۰

□ — □ — □ — □ — □

۸۸ ۹۰ ۸۹ ۹۲ ۹۱

□ — □ — □ — □ — □

عنوان: د ۱۰۰، پورې په شمېر کېنې نور مشق

| | |
|---|---|
| **د شاګردانو / استاد مشغلې** | |
| ۱- په توره تخته یو کربنه د استاد په ذریعه ویستل چې د تکوتکو سره جوړوی، هره نقطه به د یو عدد معنی ورکوی. په زبانی طور د هغوئ شمېرل، مثلاً د عدد ۲۵، نه شروع کول چې په یو سر کېنې دسه (بیا مثلاً د ۴۲ یا ۶۲، نه او دا سې نور) ۲۵ . . . . . . . . . . . . . . . | توره تخته |
| ۲- بیا د اولې او د څو نورو نقطو په ځای بکسونه جوړول د استاد په ذریعه چې عددونه پکښې ولیکلې شی. مثلاً، ۳۱ . . ۲۴ . . . ☐ . . . . ☐ . . . ☐<br>مثلاً عدد ۳۱، په اومبی بکس کښې لیکل، د طالب علمانو نه غوښتنه کول چې د غه نور بکسونه په خپلو خپلو منا سب عددونو سره ډک کړی (مثلاً ۳۴). | توره تخته |
| ۳- په دریئمه مشق پانړه کارکول: ټول کنجونه شمېرل، په عدد ۱، شروع کول، کوم کنجونه چې په توره نقطه سره په نخښه شوی دی د هغوئ په خوا کښې عددونه لیکل (اوس اوس لیکلې شوی عددونه به د چک کولو د پاره استعمالیږی). | مشق پانړه را-۵۵-۳ |
| ۴- په تسویرونو کښې د ټولو لیکلې شوو عددونو لو ستل ټولګی ته. | |

PAK-GERMAN BAS-ED

| | |
|---|---|
| 3 -55 | ر 1 |
| ۳-۵۵ | را |

۱ ۲ ۳ ۵ ۶ ۲۴ ۴۵ ۵۶ ۶۵ ۸۰ ۸۱ ۱۰۰

| ریاضي<br>اول ټولګی | عنوان: د ۱۰۰ پورې د شیزونو تعداد قیاس کول او شمېرل |
|---|---|
| ۱ر - ۵۶ | |

| د استاد مشغلې | د شاګردانو مشغلې | درسي معاونات |
|---|---|---|
| | ۱- عددونه قیاس کول او صحیح عدد سره يې مقابله کول | |
| - طالب علمانو نه غوښتنه کول چې په ټولګی کښې د طالب علمانو د تعداد اندازه ولګوي ( بغیر د شمېرلو نه).<br>- طالب علمانو نه غوښتنه کول چې د طالب علمانو د صحیح شمېر معلومولو د پاره یوه طریقه تجویز کړي ، د ضرورت په وخت مرسته کول (۱)<br>- د طالب علمانو د صحیح تعداد غوښتنه کول ؛ قیاس کړې شوو عددونو سره خوا کښې خپل عدد (مثلاً ۶۸ ) لیکل . | - د څو طالب علمانو جواب ورکول ، په تور تخته د هغو عددونو لیکل چې دوئ اندازتاً ویلی دي ( مثلاً ۵۰ ، ۸۰ ، ۱۰۰ ) بحث کول .<br>- په کار بحث کول ، د دې کار د کولو په حقله فیصله کول ، د طالب علمانو د شمېر معلومولو د پاره خپل ځایونه ترتیبول .<br>- د طالب علمانو صحیح تعداد ښودل . | توره تخته |
| - غوښتنه کول چې قیاس کړې شوې تعداد دې اصلي تعداد سره ولیکي ، مرسته کول ( ۲ ) | - د هر قیاس کړې شوي عدد د اصلي عدد سره مقابله کول ، د عددي چارټ په مرسته معلومول چې کوم عدد قیاس کړې شوي عدد ته نږدې دے ( ۲ ) | عددي چارټ |
| | ۲- د شیزونو په ګروپونو کولو او شمېرلو کښې مشق | |
| - د ړومبۍ مشق پاڼې د مطالعه کولو او په هغې د بحث کولو غوښتنه کول . د بحث لارښودنه کول او څه چې دوئ وینې یعني خلق ښاروي ، شیزونه ، د هغو په حقله د خپلو تجربو بیانولو د پاره د طالب علمانو د راګیرنه کول ؛ څه چې دوئ سم نه پېژني د هغو په حقله تپوسونه کول . | - د مشق پاڼې مطالعه کول ، څه چې دوئ وینې د هغو په حقله خبرې کول ، د خلقو مختلف کارونه کول ، ځناور ، شیزونه ، خلک په مختلفو مختلفو ځایونو کښې ، د مختلفو مختلفو شیزونو ورځ . | مشق پاڼه ۱ر-۵۶-۱ |
| - د هغو شیزونو ، ښاروو او داسې نورو په حقله پوښتنه کول چې صرف یو ځل ( په دې تصویر کښې ) موجود دي ( ۳ )<br>- د داسې شیزونو په حقله پوښتنه کول چې په تصویر کښې دوه ځایې موجود دي .<br>- د هغو شیزونو او داسې نورو په ذریعه خبرې جاري ساتل چې نور شمېره ( مقدار ) لري .<br>- په دې تصویر کښې د خلقو د شمېرلو غوښتنه کول ، د طالب علمانو لارښودنه کول چې د هغو ګروپونو نه شروع وکړي کوم چې دوئ په اسانه شمېرلې شي . بیا هغه ګروپونو ته تلل چې په کښې ډېر خلق دي او شمېرل يې ګران دي . د شمېرلو نه مخکښې د ګروپونو نه دائره تاوول .<br>- غوښتنه کول چې په دې تصویر کښې د هغو ټولو ځوانانو او زړو ، لویو او وړو خلقو شمېر وښائي په توره تخته د شمېر د لیکلو غوښتنه کول .<br>په آخر کښې صحیح عدد ښودل . | - یو یو شیز / خلک ، ځناور او داسې نور ( چرګه ، ګډ ، ځراس ، ګاډے ، کوټے ، توره تخته ) ځانله ځانله پیدا کول .<br>- دوه ځلې موجود شیزونه او داسې نور معلومول ( لکه قالیچې ، کورونه او داسې نور )<br>- د ډېرو شیزونو نومونه اخیستل ( لکه ۳۰ پنډوسونه ، ۳۰ سائیکلونه ، ۵۰ ونې ، ۵۰ داوبو منګی )<br>- بحث کول ، معلومول چې په یو وخت کښې ټول خلق شمېرل ښه نه دي . خو د هغو خلقو ګروپونه شمېرل چې یو شان کارونه کوي ( مثلاً د تصویر په آخر کښې ۶ ماشومان یو پنډوس سره لوبې کوي ، ۳۰ سړي سائیکلونه چلوي ، ۵ ښځې منګي کښې اوبه راوړي او داسې نور ) .<br>- د طالب علمانو ځانله ځانله شمېرل ، معلوم شوے عدد په توره تخته لیکل ، د عددي چارټ په مدد سره د طالب علمانو معلومول چې څومره صحیح عدد ته نږدې دے . | عددي چارټ |

| درسي پلان نمبر: ر ۱-۵۶ | |
| --- | --- |

د دې درسي پلان په باب شفهي نورې تبصرې:

۱، هر کله چې د ټولګي ځای تنګ او د طالب علمانو شمېر زيات وي، نو د طالب علمانو د شمېرلو د پاره به دا بهتره وي چې ټول بهرته ووځي او کله چې د دروازې نه تېرېږي نو يو يو دې وشمېرل شي. د شمېرلو طريقه دا کېدای شي چې هر طالب علم دې يو عدد ووايي، لومړنی طالب علم دې د «۱» نه شروع وکړي ان ترڅو چې ټول طالب علمان يو يو عدد ووايي.

۲، استاد به د طالب علمانو د اسې عدد سره په نږدې عدد پيدا کولو کښې مرسته کوي او دا مرسته به داسې وي چې استاد په چارټ کښې متعلقه عدد ته اشاره وکړي.

۳، د شيزونو يا خلقو د ځايونو (پوزيشنونو) په حقله د خبرو کولو د پاره دې د ماشومانو راګېرنه وشي مثلاً "دوه" د سنډې په سر کښې دی، په ښۍ طرف دی، په کس طرف دی، کورسره نږدې دی، ونې لاندې دی او داسې نور."



د بل درسي پلان د ښوونځي د ورځني درسونو ځاکې

اول نیم درسي ورځې ر۱-۵٦

| عنوان: د دائرو د شمېر قیاس کول او شمېرل يې | |
|---|---|
| **د شاګردانو / استاد مشغلې** | **درسي معاونات** |
| ۱- د استاد د یوشمېر لوبې اعلان کول. تشریح کول او عملي مظاهره کول: ( استاد په اوچت آواز خو په مزه مزه شمېرل، هر عدد سره لاسونه پړقول ( مثلاً ۵، ٦، ۷، ۸) بیا په مزه مزه د لاسونو پړقول جاري ساتل، خو صرف په یادو شمېرل (مثلاً ۹، ۱۰، ۱۱). ( دغه تړل وخت کښې ماشومان په یادو د شمېرلو پیروي کوي. هم په هغه شان سره په مزه مزه لاسونه پړقول څنګه چې استاد شمېرکوي او لاسونه پړقوي). بیا د استاد یوې مناسبې اشاره سره ښودل ( څرګندول) چې د لاس بل پړق به د هر په تېزه وي او د لاس په دې تېز پړق سره د ماشومانو صحیح عدد په تېزه ویل او ۱۲، ۱۱ ته رسېدل. څو ځله تکرار، د یو نوي عدد نه شروع کول، هم په دغه طریقه عمل کول ( دا مشق په اول کښې د هر کار غواړي خو روسته بیا د پر خوند لري.) | |
| ۲- د دویمې مشق پاڼې بڼې نیمائي ته کتل، معلومول او جواب ورکول چې په یو قطار کښې څومره نقطې دي (۱۰)، په ټول جدول (ټېبل) کښې څومره نقطې دي (۱۰۰)، په پاسنۍ برخه کښې څومره نقطې دي (۵۰)، په پاسنۍ ښۍ برخه کښې څومره نقطې دي (۲۵). | مشق پاڼه ر۱-۵٦-۲ |
| ۳- په کار بحث کول او ځان پوهول: عدد ۸۴- لوړول، متعلقه ٦۹ دائرو نه کرښه چاپېرول، په غښتنه شوې دائرې نه شروع کول، د ماشومانو ځانله کار کول، جوړه جوړه چک کول. | |

| ر۱ | 2-56 |
|---|---|
| ر۱ | ۲-۵٦ |

۸۴

٦۹

| عنوان: د عددونو یو لوبه کول او غلط عددونه معلومول | |
|---|---|
| د شاګردانو / استاد مشغلې | |
| ۱- د عدد لوبې تشریح کول. د ټولو ماشومانو اودریدل. د هر ماشوم یو عدد ویل<br>د۱۰، ۲۰. یا بل عدد نه شروع کول. د عدد نهٔ ویل کله چې دوئ د ۱۰۰- عدد ته<br>اورسی یا بل یو مکمل لسیز. نه لکه ۲۰، ۳۰، ۴۰ اوداسې نور. د کوم ماشوم چې<br>دا عدد دے، د هغهٔ د عدد یا دیر بل خندوونکی لفظ پهٔ ځای، ایش. ویل. د هغه<br>ماشوم د لوبې نه ویستل او کېښنول ئې چاچې غلط عدد اخیستے وی یا ئې مکمل<br>لسیز ویلے وی. آخری ولاړکس ګټونکے دے.<br>۲- د لوبې تکرارکول، د لوبې د کرا نولو د پاره د مختلفو ایش، عددونو نمونه اخیستل<br>مثلاً هغه ټول عددونه چې پهٔ ۱. شروع کیږی یعنې ۲۱، ۳۱، ۴۱ اوداسې نور.<br>۳- د دریمې مشق پاڼې ته د کتلو غوښتنه کول، د استاد لهٔ خوا- د عددونو د ومبے اودویم<br>قطار لوستل. غوښتنه کول چې کوم څیز زړهٔ را ښکونکے دے. د ماشومانو معلومول<br>چې ځینې عددونه پهٔ دې چارټ کښې نهٔ شی ځائیدے. د استاد ماشومانو ته ویل چې<br>غلط عدد تورکړی (سورے پرې وکړی). ماشومانو ته ویل چې قطار پهٔ قطار ئې جاری<br>وساتی. غلط عددونه معلومول او متعلقه بکسونه تورول . آخر کښې د استاد یو<br>چارټ ښودل چې صحیح تورکړے شوے وی، د ماشومانو خپلې مشق پاڼې مقابله<br>کول ( = د دوئ د سوررو شوو بکسونو خپله نمونه )، که ضرورت وی نو اصلاح<br>ئې کول. | مشق پاڼه ر۱-۵٦-۳ |

| 3—56 | ر1 |
|---|---|
| ۳-۵٦ | ر۱ |

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ١٠ | ٩ | ٨ | ١٢ | ۴ | ۵ | ۴ | ٣ | ٧ | ١ |
| ٢٠ | ١٩ | ٣٨ | ١٧ | ١٦ | ٢٢ | ١۴ | ١٩ | ١٢ | ١١ |
| ٣٠ | ٣٠ | ٢٨ | ٢٧ | ٢٦ | ٢۵ | ۴٢ | ٢٣ | ٢٢ | ٢١ |
| ۵٠ | ٣٩ | ٣٨ | ٣٧ | ٣٦ | ١٧ | ٣۴ | ٩٩ | ٣٢ | ٣١ |
| ۴٠ | ۴٩ | ۴٨ | ۴٧ | ۴٣ | ۴۵ | ۴۴ | ۴٣ | ١۴ | ۴١ |
| ٦٠ | ٧١ | ۵٨ | ٦٦ | ۵٦ | ۵۵ | ۵۴ | ۵٣ | ۵٢ | ٦٣ |
| ٧٠ | ٦٩ | ٨۵ | ٦٧ | ٦٦ | ٦۵ | ٦۴ | ٦٣ | ٦٢ | ٦١ |
| ٨٠ | ٣٩ | ٧٨ | ١١ | ٧٦ | ٧۵ | ٧۴ | ٧٣ | ٧٢ | ٧١ |
| ٠٩ | ٨٩ | ٨٨ | ٨٧ | ٨٦ | ٨۵ | ٨۴ | ٨٣ | ٨٢ | ٨١ |
| ١٠٠ | ٩٩ | ٩٨ | ٩٧ | ٩٦ | ٩۵ | ٩۴ | ٩٣ | ٩٢ | ٩١ |

؟




-۹۹-

| درسي پلان نمبر: ر۱-۳۴ | |
|---|---|

د دې درسي پلان په باب شو نوري تجربې ،

۱) استاد کولی شي چې مختلف تسمه ستينډونه چې له شيزونه پکښې ځائيدے شي استعمال کړي لکه د چاک خالي بکسې ، د بسکټو خالي ډبې ، د ختو يره کلوله چې د لسو پنسلونو يا قلمونو د پاره پکښې لس سوري وي او داسې نور ،





۲) استاد به په غير د شوه ترتيب نه پنسلونه ترې را لرې کړي ، کله د بنځ ، کله د کښتي او کله د کومې مباې برنې نه ( غير منظم ما ډلونه بيانسوني پرېښودل ) لکه :



۳) عدد ۱۰ د دورهندسې (۱۰ او ۰۰) نه جوړ دے خو په دې موضوع به د لته زور نه اچول کيږي . ماشومان به دزده کړې په دې مرحله کښې عدد ۱۰ د ايکي يو عدد په حيث زده کوي او د عدد د اجزاؤ د ترتيب په باب به د ماشوم نه لاره نه خطا کيږي . کله چې روسته د لس کرن سيستم په باب ماشوم پوره زده کوي نو په همغه وخت کښې به د عدد ۱۰ په دواړو اجزاؤ علاحده غور کيږي .

| ر/ 1 — 34<br>ر۱ ۱-۳۴ | | ۱۰ | | | ۱۰ | | | ۱۰ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱۰ | ۱۰ | ۱۰ | ۱۰ | ۱۰ | ۱۰ | ۱۰ | ۱۰ | ۱۰ |
| ۱۰ | ۱۰ | ۱۰ | ۱۰ | ۱۰ | ۱۰ | ۱۰ | ۱۰ | ۱۰ |
| | | | | | | | | |
| | | | | | | | | |
| | | | | | | ۱۰ | ۱۰ | ۱۰ |
| | | | | | | | | |

د ښوونکي لارښود

# رياضي

لومړی ټولګی (دويمه نيمايي)

درسي پلانونه:

ر۱-۳۳ څخه تر ر۱-۶۴ پورې

HB MI 33-64
REVISED VERSION
(A) PGBE

۱۹۹۰

# د ښوونکي لارښود

# رياضي

## لومړی ټولګی (دويمه نيمايي)

درسي پلانونه:
م ١-٣٣ څخه تر م ١-٦۴ پورې

HB MI 33-64
REVISED VERSION
(A) PGBE

۱۹۹۰